# کندهار

دیني، علمي، ادبي، اجتماعي، تاریخي

د کندهار ولایت د اطلاعاتو کلتور ریاست دوه میاشتنۍ خپرونه

## داوطن موځه په سوال موندلې ندي

یادبښت



## له وچ کالي ځپلو سره د ملګرو ملتو مرستې کافي ندي

ملامحمد حسن رحماني



## د فقهي او اجتهاد نابغه مځکښې امام ابو حنیفه او د وخت واکمن

## زموږ هیوادوال کولای سي چي د صنعت په برخه کي په اسانۍ سره هر ډول فابریکي جوړې کړي

دکانو او صنایعو د رئیس سره مرکه





## د بولدک په ولسوالۍ کي د چرسو ۲۰ کارخاني او ۲۰۰۰ کیلو ګرامه چرس وسوځول شوه

بسم الله الرحمن الرحيم

إِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ لِيَصُدُّوا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ﴿٣٦﴾
سورة انفال

ژباړه : بیشکه هغه کسان چې کافران سوي دي نفقه کوي ( لګوي ) دوی مالونه خپل دپاره ددې چې منع کړي دوی ( خلق ) له لارې د الله څخه .

تفسیر : د بدر په غزا کښې د کفارو له مشرانو څني د ولسو سردارانو دا په غاړه اخیستي وه چې هر یو تن به په یوه ورځ کښې ټول لښکرو ته ډوډی پخوی ، لکه چې لس اوښان به هره ورځ د یوه له لوري حلالیدل او پر لښکرو به خوړل کیدل - بیا چې دوی ماتې وموندله نو ددغه مات سوي لښکر مجمع کله چې مکې معظمې ته ورسیده ، اوبو سفیان او د کفارو نورو مشرانوته یې وویل هغه مال چې تجارتي قافلې له شامه راوړي دي ، هغه دي ټول د اسلام په خلاف ، او له محمد څخه د انتقام اخیستلو په لاره کې ولګول سي ! لکه چې پر دغه خبره ټول سره راضي سول ، نو د داسي مال لګولو ذکر په دغه ایت کې راغلی دی .

## د ښتې پېژندنه

په لومړي مخ کې د میوند د شهیدانو هدیره او دکندهار ښار
دکندهار په ښار کې جوړي شوې امارتي او شخصي
فابریکې او سوځول شوي چرس .
په څلورم مخ کې دکندهار نوې تاریخي عیدګاه






دیني، علمي، ادبي، اجتماعي، تاریخي

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور دوه میاشتنۍ خپرونه

د ۱۴۲۱ هجري سپوږمیز کال د شعبان او رمضان میاشتنت

یا د ۱۳۷۹ هجري لمریز کال د لیندۍ او مرغومي میاشت






## لیک لړ

مخ



### کندهار مجله

د تاسیس کال : د وري میاشت
۱۳۳۹ لمریز کال
دوهم ځل خپریدنه د سلواغي
میاشت ۱۳۷۷
پرله پسي دوولسمه ګڼه
د دریم کال پنځمه ګڼه

### اداره

مسؤل مدیر: ملا سلیمان اغا "بهیر"
کتونکي ډله
۱ : ملا عبدالحی مطمئن
۲ : محب الله اسحاقي
۳ : عبدالواسع هڅیال

### پته

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست
د مجلې دفتر
تلیفون ، فکس ۲۱۰۴۴۰-۳-۹۳ +
۸۳۷۷۰۷ ۸۱ ۹۲ + په پاکستان
کې پوست بکس لمبر ( ۱ ) چمن

### کلنۍ ګډون

په کندهار کې ۹۰۰۰۰ افغانۍ په نورو ولایتو کې ۱۲۰۰۰۰ افغانۍ په ګاونډیو هیوادونوکې ۲۰۰ کلداري په لیري هیوادونو کې ۴۰۰ امریکائی ډالره د یوې ګڼې بیه ۱۵۰۰۰ افغانۍ یا ۲۰ کلداري زده کونکي ته د تصدیق په لرلو سره په نیمه بیه ورکول کیږي

### تخنیکي چارې

کمپوز او ډیزاین: دالامارت کمپیوټر اداره
کمپوزر : نوراغا ( هاشمي )
د چاپ ځای : د کندهار امارتي مطبعه

# د امریکا او روسیې لخوا پر افغانانو باندي د ناروا بندیزونو په اړه د عالیقدر امیرالمؤمنین

# اعلامیه

د ملګرو ملتونو د امنیت شورى لخوا د اسلام او مسلمانانو د ځپلو په غرض د بې استناده او کاذبو پلمو د لاري یو اقدام همدا بندیزونه دي چې متاسفانه نور هیوادونه په ځانګړی توګه اسلامی هیوادونه یې په غفلت سره ننداره کوی نړی شاهده ده چې د افغانستان اسلامي نظام او خلګ د اسلامی عقیدې او استقلال په مواردو کې تل یو موټی پاتی شوی دي.

د مخدره موادو د کښت یو مخیز بندیز دا څرګنده کړه چې مغرض استکبارى ځواك ځپل مشخص هدف لرى هغه دا چې مستقل واقعی اسلامی نظام نشی زغملای د بیلګې په توګه چې کلهٔ اسامه بن لادن د خپلې خوښى د احتمالى وتلو خبر خپور شو د دې سره جوخت د امریکا د بهرنیو چارو وزارت په ډاګه کړې چې د افغانستان اسلامي امارت سره نور ژورمسائل هم لرو او د اسامه په وتلو مو مشکل نه حل کیږی څرنګه چې د عقیدې او آزادی ساتنه امتحانی ستونزې په زغم او صبر سره ګالل غواړي بناءً له هیوادوالو څخه غوښتنه کوم چې د دین د دښمنانو په مقابل کې یو موټی واوسی د بشردښمنه او سخت زړو ظالمانو په مقابل کې چې مظاهرې کومه ګټه نلری ورځخه خود داری وکړی ډاډمن اوسی چې لوی او قادر خدای تل د حق ملګری دي د رزق او ساتنې زمه وار هم هغه ذات دی او بس.

ومن الله التوفیق

۲۴ رمضان المبارك ۱۴۲۱







# دا وطن موږ څه په سوال موندلی نه دی

د لوی ځښتن د سپیڅلي استازي (رسول الله صلی الله علیه وسلم) مبارکې سترګې چې د احد په غره ولګېدې نو په مقدس زړه کې یې له هغه سره د مینې خوږې ځپې را پورته شوې. له احد سره د پیغمبري پاکې مینې ځپې د سپیڅلي پیغمبر په ژبه سوبره خوله کې په دې برکتي اوله مینې ډکې جملې باندې بدلې شوې (احد یحبنا ونحن نحبه) ژباړه: احد له موږ سره مینه لري او موږ له ده سره مینه لرو.

انسان چې چیرته زیږېدلی وي او په کومه ځمکه یې حاپوری کړې وي، او هلته لوی شوی وي نو په ښخ (طبیعت) کې یې د هغه وطن مینه اغزل شوې وي. له دې کبله د خدای (ج) خواږه پیغمبر د خپل وطن غره ته په لېدو سره خپله مینه پټه نکړای شوه.

څکه هغه دومره رپاته مینه وه چې د احد په ډبرین زړه یې هم اغېزه کړې وه. او دوه اړخیزه ګرځېدلی وه. یوه ورځ د خدای (ج) پیغمبر له خپلو دوو خوږو ملګرو (ابو بکر صدیق، عمر فاروق رضی الله عنهما) سره د احد غره سرته ختلي و چې احد په شورېدو شو. د خدای (ج) پیغمبر احد ته وویل: ودرېږه! څکه په تا باندې یو نبي او دوه شهیدان ولاړ دي. هغه و چې احد ودرېدو.

نو افغانان چې خدای (ج) په دې خړو دښتو او اسمانڅکو غرونو کې ښځولي دي. او دلته یې خاپوري کړي دي. ددې خړو دښتو او دنګو غرونو مینې ددوی په زړونو کې هم ځای نیولی دی. او په افغاني ښخ کې یې اغزل شوی ده. دی شډلي مینې چې په دې یاغي زړونو کې له کله نه کور جوړ کړی دی نو ددې زړونو ډېري وینې یې زېښلي دي. په دې پاکو وینو سره دې دنګو غرونو او خړو دښتو نه ایلېدونکې برم تر لاسه کړی دی. او د باندنیو بلوسګرو او یرغلګرو ناولي قدمونه په خان نښي زغملای. پردي ځواکونه چې دلته را ننوتلي دي نو ګواکې په خپلو قدمونو یې د خپلو بدنونو جنازې راوړې دي. او بیا نو دی غیرتي خاورې د وروستني خوب له پاره په خپله غېږه کې ځای ورکړی دی. د تاریخ په اوږدو کې د پراختیا غوښتني ډېر طاغوتیان دلته راغلي دي. او خپل زورونه یې ازمویلي دي. خو په ماتو ککرو او کنداسو زامو بېرته ستانه شوي دي دا لرې دومره اوږده شوې چې ان تر موږه پورې را غځېدلې ده او نن هم د هغه

کش او نکیر ، خرپ او ترپ زوړ لا روان دی . چې لوی خښتن بیا ددې خاورې بچیان بریالي کړل . او باندني بلوسګر یې په سوال او زاریو نه ، بلکې د متو په زور له خپلې خاورې و ابستل خو ددې بریاو او ویاړونو تر لاسه کولو په اخر کې باید دې ټکي ته ځیر شو چې په خپل وطن وینه تویول ، او سرونه قصابه کول موږ اوتاسو ته خو ستر او لوی نعمتونه را په برخه کوي . لکه حریت او ازادي ، د خپلې سپېڅلې کلیمې لوړتیا د ملي غرور او ویاړونو خوندي پاتې کیدل ، خو د ژوند د ځینې بنسټیزو اړخونو له پاره بیا دا وینه تویه ول کار نکوي . بلکې دهغو کارونو له پاره مخلصانه کار او خولې تویول کار کوي . د پردیو د یرغل او تاړاکونو په عوبل کې هیواد کنډر شي او ویرونکې کنډواله پاتې شي. ټولنه له کونډو ، بورو ، او یتیمانو ډکه شي خاني خراپې او کورونه سپېره شي . د آه او فریاد ونو ، کریکو او ساندو ، زړه بورنونکې غلبله جوړه شي

بیانو په داسې ویرژلي ، غم ځپلي وران کنډر ټاټوبي کې د ازادی د مجاهد له پاره نور له ستونځو ډک پړاونه را مخته شي . که د ازادی په جګړه کې دده وینې ته اړتیا وه او ده ونه سپموله حو د هیواد د ودانولو په پروسه کې بیا دده خولې تویولو ته زیات ضرورت وي . بیا به د یتیمانو اوښکې پاکوي د کونډو او بورو د نهیلو او سویو زړونو له پاره به درمل پیدا کوي .

هوکې ! د خپل ملګري شهید د زاره چاودي مور ، کونډې او سپېره یتیم هیلې په ده پورې تړلې دي .

د بورو میندو د زړه ټوټې ، د کونډو او یتیمانو د سر سوری خو د هیواد په ازادی کې قرباني شوي وي نو ددې سپیرو انسانانو په ټول ملت او هیواد باندې د احسان د روند پور اوښتی وی او د هغوی د احسان پور هیرول نه بښونکی جرم دی .

نو لکه دا هیواد چې چا په سوال ندی راکړی او ډیرګوینې مو پرې بهولي دي . دا راز د سرپنا او یوه ګوله ډوډی هم خول په سوال نه راکوي . او که یې راکوي باید افغاني یاغي غرور یې ونه مني . او دخپلو متو ګټلې ډوډی څخه پرته پردیو خیراتونو ته شپې سبا نکړي . لکه څرنګه چې د هیواد د ازادی له پاره وینه تویه ولای شو .

دا راز باید د هیواد د ابادی له پاره خولې هم تویی کړو . لکه څرنګه چې وطن چا په سوال او زاریو ندی راکړی دا راز په سوال او بسپنه باندې نه هیواد ودانه ولای شو او ن خپل وری خانونه مړولای شو . دا هیواد چې د وینو په بدل کې موتر لاسه کړ نن د کونډو او یتیمانو په کلي بدل شوی او په سینه کې یې د شهیدانو پلنې هدیرې جوړې شوي .

نو ګرانو هیوادوالو ! ستاسو خوښه که د ا د کونډو او یتیمانو په کلي هیواد او د خپلو ملګرو شهیدانو په هدیره هیواد کې خپلې مزی او چړچې کوئ . خپل ځانونه او اولادونه نازوئ اوکه د کونډو ، یتیمانو ، کنډواله هیواد چوپړ ته ملا تړئ او خولې بهوی څکه د پوښتنې لویه ورځ را تلونکی ده . د خیر او شر ذره ذره عملونه به ووینو . نن که د کونډو او یتیمانو لاسونه ډیر بې سیکه او ناتوانه دی خو په هغه ورځ به ډیر پیاوړي او ځواکمن وی . نن یې که له سترګو مړی اوښکې بهیږي خو په هغه ورځ به د قهر او غچ اخیستنې سرې لمبې ځنې بادیږي . نن که یې د حق پوښتلو او ګرویږلو ځول نشته خو په هغه ورځ به قهار ذات د ټولو بې وزلو د حق پوښتنه وکړي . (بلی ان ربه کان به بصیرا )




# کریم سورتونه او د هغوی مضامین

ژباړه عزیز الرحمن (اسحاقزی)

۵۸ - سوره المجادله ددغه سورت نوم ددغه سورة د لمړي ایت د کلمې ((تجادلك)) څخه اخذ کړل سوی دی په دغه سورة کې د يوې ښځې د خپل میړه د ظهار موضوع د رسول کریم (ص) و مختنه وړاندې کړل او ورسره په دې کې و مسلمانانو ته د مجلس اداب او حقوق العباد هم ښودل سوي دي

۵۹ - سورت الحشر: په دغه سورة کې په دوهم ایت کې د ((حشر)) کلمه راغلې ده په دغه نسبت دغه سوره حشر وبلل سو. پدې سوره کې د بني نضیر د جلا وطنۍ ذکر کړل سوی دی. نو ځکه دغه سورت ته سورة ((بني نضير)) هم ویل کیږي. په اخرې ایاتونو کې په تقوی او فسق کې فرق هم ښودل سوي دی

۶۰ - سورة الممتحنة: ددغه سورت په لسم ایت کې د هجرت کونکو نوو مسلمانو سوو ښځو د ازمویولو هدایت کړل سوي دی نوځکه دغه سورة ((الممتحنة)) وبلل سو. په دغه سورت کې مسلمانانو ته د کفارو سره د دوستې کولو او د مشرکینو سره د نکاح کولو مخالفت کړل سوي دی.

۶۱ - سورة صف: دغه نوم ددغه سورت د څلورم ایت د یوې کلمې ((صفا)) څخه ماخوذ دی. ددغه سورت اصل مضمون د اسلام ددین غالبیده دی په اخرې ایت کې مومنانو ته خطاب کړل سوی دی.

۶۲ - سورة الجمعه: په دغه سورت کې د مسلمانانو دپاره د جمعې احکامات بیا کړل سوي دي.

۶۳ - سورة المنافقون: دغه نوم د لمړي ایت د یوې کلمې څخه اخستل سوي دی پدې سورت کې د منافقینو د نبي کریم (ص) و مختنه د قسم اخیستلو تذکره سته، چې یقینا رسول اقدس (ص) د الله تعالی (ج) رسول دی. مومنانو ته ویل سوي دي چې د مال او اولاد په خاطر د خدای (ج) څخه غافله نسي.

۶۴ - سورة تغابن: دغه نوم ددغه سورت د نهم ایت د کلمې ((ذلك يوم التغابن)) څخه اخیستل سوي دی. پدې سورت کې د الله تعالی (ج) د باچاهۍ د تذکرې څخه پرته د هرشي په باره کې ویل سوي دي چې هغه د رب کائنات (ج) تسبیح کوي.

۶۵ - سورة الطلاق: چونکه په دغه سورت کې د طلاق احکام بیان کړل سوي دي. نو ځکه دغه سورت ته ((سورة الطلاق)) ویل کیږي.

۶۶ - سورة التحريمه: دغه نوم د لمړي ایت د کلمې ((تحرم)) څخه اخذ کړل سوي دی. پدې سورت کې ویل سوي دي چې ای نبي (ص)! ته ولې هغه شی حراموې چې د منشاء الهی سره سمون نخوري او ورسره د هر چا دپاره هغه څه دي چې هغه د خپلو اعمالو له رویه مستحق دي.

۶۷ - سورة الملك: ددغه سورت نوم د لمړي ایت د جملې ((تبارك الذي بيده الملك)) څخه اخیستل سوي دی. پدې سورت کې د توحید حقوق بیان کړل سوي دي.

۶۸ - سورة القلم: دغه نوم ددغه سورت په سرکې د استعمال سوی کلمې (القلم) په نامه وبلل سو پدې سورت کې پر حضرت محمد (ص) باندې د کړل سوو اعتراضونو ځواب، مخالفینو ته تنبیه او نصیحت او نبي کریم (ص) ته د صبر تلقین سوی دی.

۶۹ - سورة الحاقه: ددغه سورت نوم د ((الحاقه)) د کلیمې پر بنیاد ایښودل سوی دی. پدې سورت کې د قیامت د راتلو او ددې نه منو نکې (منکرین) د خدای تعالی (ج) د عذاب مستحق ګڼل سوي دي او ورسره د قران کریم په باره کې ویل سوي دي چې د کوم شاعر یا ساحر کلام ندی بلکه د الله رب العزت کلام دی

۷۰ - سورة معارج: دغه نوم د دریم ایت د کلمې ((ذي المعارج)) څخه اخیستل سوي دی. پدې سورت کې مومنانو ته د نفس د تزکیې پر بنا د لوړو درجو ورکولو د ذکر برسیره کفارو ته پر حضرت رسول کریم (ص) د پسخند وهلو او تکلیف رسولو په باره کې ذکر راغلی دی. چې که دوي د خپلو حرکتو څخه لاس وانخلې نو الله تعالی (ج) به د دوی پر ځای یو بل قوم راولي چې هغه به فرمانبرداره وي

۷۱ سورة نوح ددغه سورت د مضامینو عنوان (نوح) دی په دغه نسبت دغه سورت ((نوح)) وبلل سو پدې سورت کې د اوله څخه تر اخره پوري د حضرت نوح علیه والسلام قصه بیان کړل سوي ده

۷۲ سوره جن په دغه سورت کې د پیر بیانو ذکر سوی دی نو حکه ددغه سورت نوم ((سوره جن)) و بلل سو

۷۳ - سورة المزمل ددغه سورت د لمړي ایت د کلیمي ((المزمل)) ددغه سورت د نوم بنیاد جوړ سوي دی پدې سورت کې الله تعالی رسول کریم (ص) ته هدایت فرمایلی دی چې ته (ص) په شپه کې را کښینه او د الله عبادت کوه د تهجد د لمانځه هم ذکر راغلی دی

۷۴ سورة المدثر ددغه سورت د لمړي ایت ((المدثر)) کلیمه ددغه سورت نوم وټاکل سو پدې سورت کې حضرت محمد (ص) علیه وسلم ته د خپل رب عظمت ستایلو حکم سوی دی په اخر کې د قران شریف په باره کې بیان سوی دی چې قران یو نصیحت دی

۷۵ سورة القیامة دغه نوم ددغه سورت د لمړي ایت د کلیمي (القیامة) په نسبت ایښودل سوي دی پدې سورت کې د قیامت پر ذکر سربیره د اخرت د منکرینو د اعتراضاتو خوابونه ورکړل سوي دي

۷۶ - سورة الدهر دغه نوم د لمړي ایت څخه ماخوذ دی دغه سورت ته ((سورة الانسان)) هم ویل کیږي پدې سورت کې هم د قیامت ذکر راغلی دی

۷۷ - سورة المرسلات دغه نوم د لمړي ایت د کلیمي (والمرسلات) څخه اخذ کړل سوي دی پدې سورت کې ویل سوي دي چې قیامت به حتمي راځي او ورسره ددغه څو ورځني ژوند څخه چې د اخرت منکرین څومره خوندونه اخیستلای سي وا دې خلې اخر به دوی ته عذاب ورکول کیږي (ورکول سي)

۷۸ - سورة النبأ ددغه سورت په دوهم ایت کې د ((نبأ)) کلیمه راغلي ده چې معنی یې ده حالات او سرګذشت پدې سورت کې د انسانانو د ښو او بدو افعالو د انجام تصویر وړاندې سوی دی او ورسره د قیامت بیان هم راغلی دی

۷۹ - سوره النازعات ددغه سورت لمړی کلیمه ((والنازعات)) ده پر دغه بنا دغه سورت (النازعات) و بلل سو ددغه سورت اصل مضمون د اخرت د خواب ورکولو څخه بیره ول او ابدي ژوند وخوا ته د انسان متوجه کول دي د قران پاك د بلني بنیاد پر همدغه اخرت باندي یقین دی

۸۰ - سوره عبس ددغه سورت نوم ددغه سورت د اولي کلمي څخه اخیستل سوي دی په دغه سورت کې د اسلام د بلني مخالفت کونکو ته خبر ورکول سوی دی او ورسره د قران مجید بزرګي او لوئی بیان کړل سوي ده الله تعالی (ج) د خپلو نعمتونو او خپل قدرت بیان هم فرمایلی دی

۸۱ - سورة التکویر دغه نوم د لمړي ایت د کلمي ((کورت)) څخه اخذ کړل سوی دی ددغه سورت مرکزي مضمون پر اخرت باندي د ایمان راوړلو بلنه ورکول دي

۸۲ - سورة انفطار دغه نوم ددغه سورت د لمړي ایت د کلمي ((انفطرت)) څخه ماخوذ دی پدې سورت کې د قیامت د ورځي بیان دی او ور سره د تعجب اظهار کړل سوی دی چې هغه کوم شي دی چې انسان د خپل پرور دګار څخه غافله وي

۸۳ - سورة المطففین دغه نوم د لمړي ایت ((ویل للمطففین)) څخه اخیستل سوی دی په اخرت کې د جزا ورکړنګ ددغه سورت مرکزي مضمون دی او ورسره د حقوق العباد ذکر هم سته

۸۴ - سوره الانشقاق دغه نوم ددغه سورت د لمړي ایت د کلیمي ((انشقاق)) څخه ماخوذ دی چې معنی یې ده چاودیدل پدې سورت کې د فطرت په مظاهرو کې تغیر تر قیامته پوري او د انسان بل جهان ته د تلو ذکر راغلی دی

۸۵ - سورة البروج پدې سورت کې په ظاهره د یمن متعصب یهودي باچې ((ذونو)) او د هغه د مظالمو ذکر راغلی دی چې هغه د نجران پر عیسائیانو بندي وکړل او دغه راز د فرعون او د ثمود د مثالونو په ورکولو سره خبر ورکول سوی دی چې ظلم او ستم او د حق حقه د سرکښی انجام تباهي او د جرب عذاب دی

۸۶ - سورة الطارق ددغه سورت نوم په دغه مناسبت ایښودل سوي دی چې ددغه سورت په لمړي ایت کې د (طارق) کلیمه راغلي ده او ددغه سورت مرکزي مضمون قیامت دی

۸۷ - سورة الاعلی ددغه سورت نوم ددغه سورت د لمړي ایت د کلیمي (الاعلی) څخه اخیستل سوی دی پدې سورت کې د انسان د جسماني پیدایښت او جوړښت د روحاني تکامل ذکر راغلی دی په مخکښنیو اسماني صحیفو کې د حضرت ابراهیم علیه السلام او د حضرت موسی علیه السلام صحیفي ذکر سوي دي

۸۸ - سورة الغاشیه ددغه سورت نوم ددغه سورت د لمړي ایت د کلیمي (الغاشیه) په نسبت ایښودل سوي دی ددې سورت مرکزي مضمون دا دی چې اخرت به ضرور راځي او هر سړي ته به هغه څه ورکړل سي چې هغه په دنیا کې ګټلي وي

۸۹ - سورة الفجر د لمړي کلیمي ((الفجر)) پر بنیاد ددغه سورت نوم ایښودل سوي دی ددې سورت ابتداً په څو قسمونو کیږي او ددې سورت اصل موضوع اخرت ده

۹۰ - سورة البلد دغه نوم د لمړي ایت د کلیمي څخه ماخذ دی پدې سورت کې د یتیم او د مسکین خدمت د غلامانو ازادي، د صبر او زړی سوي تلقین او په اخرت کې د ښه او بد د بدل ذکر راغلی دی

# اسلامي لباس د مسلمانانو د تشخص ضامن

مولوی عبدالودود

سبحان من زين الرجال باللحی وزين النسا بالذوائب )

ددنيا په هر نظام و پاچهی کې د مختلفو شعبو يو خانګړي يونفارم مقرر دی. د پوليسو يونيفارم جلا او د عسکريو يونيفارم جلا د سپرو عسکرو جلا او د پيادو جلا د ځمکنيو فوځونو يو نيفارم جلا او بحري فوځونو جلا همدا سي د لوړ رتبو جلا او ماتحت جلا بيا پديت دريشي يا يونيفارم د خپلي وظيفي پر وخت ونلري نو هغه د سختي جزا مستحق دی لکه څنګه چې رسمي کارکونکی و خپلي وظفي ته د يونيفارم په نه مراعت کولو مجرم ګڼل کيږي همدا راز د بلي شعبي د يو نيفارم پر اغوستلو سره هم مجرم ګڼل کيږي. د امر په يو قانون کې ضروري بلل کيږي همدا راز په قومونو ملتونو کې هم هميشه دا کار په ټينګه توګه په نظر کې نيول شوی دی.

که تاسو فکر وکړی نو به ووينی چې انګلستان فرانسه جرمني استراليا امريکا او نور هيوادونه د ژوند د هري شعبي اړوند کارکونکو لپاره جلا جلا ډول مشخص لباس او بيرغ لري او هر څوك په خپل بيرغ پيژندل کيږي په همدي مشخص لباس باندي د جنګ په وخت کې په ملکي او سياسي مقاماتو کې امتياز او توپير لري او هر قوم د خپل يو نيفارم ساتل ډير ضروري ګڼي کله ددي لباس په اړولو کې ډير سخت مشکلات پيدا کوي مثلا که د يو قوم بيرغ را وغورځول سي يا يې سپکاوی وسي په ډير لويه پيمانه جنجال را مينځ ته کيږي. يونيفارم يواځي په لباس پوري خاص نه دی بلکې ډير وختونه په بدن کې يوه علامه يا بله نخښه د يونيفارم پر ځای استعماليږي د بيلګي په توګه په بعضو ځايونو کې د سري غوږ او يا پزه سوری کيږي او يو حلقه ور اچول کيږي تر څوك خلك وپوهيږي چې دا د فلاني ډلي مربوط دی همدا راز په بعضو ځايونو کې د ويښتانو غټ پريښودل يو نيفارم بلل کيږي.

خلاصه دا چې د مختلفو شعبو په مابين کې دا توپير او جلاوالی علامه په ټولو حکموتو او ملتونو او قومونو کې روانه ده که دا نه وي نو د يو شعبي د کارکونکو جلاوالی له بلي څخه ګران کار دی او يا د قوم او ملت له بله قوم او ملت څخه هم توپير نسي کيدای.

کوم قوم يا حکومت چې پر خپل يو نيفارم ونه دريږي نو هغه ډير ژر بدليږي يا په نورو قومونو کې جذب کيږي د مثال په توګه هندوستان ته مختلف قومونه لکه يونانيان، ترکان، مصريان او نور قومونه تللي دي خو په ډير لږ وخت کې يې نوم او نښان ورك شو چې ټول په هندو قوم کې جذب سول د هغوی د ورکي علت يوازي دا وه چې په رواج او لباس کې د هندو قوم تابع سول که څه هم ددوی په عقايدو کې يو څه اختلاف سته خو هغه په هندو قوم ياديږي اوچا چې خپل لباس او يو نيفارم ندی بدل کړی هغه تر اوسه لاهم ندي بدل سوي د بيلګي په توګه ديرشين قوم چې هند ته راغلي د هغوی د ښځو يونيفارم بدل سو ژبه معنويت يې هم ور بدل کړ خو د هغوی د نارينوو پر سر خول يې لا تر اوسه هم ندی بدل کړی چې په هغه اوس لاهم پيژندل کيږي او دا راز سيکانو خپل لباس چې هغه د ږيري او سر د ويښتانو کمول دي اوس لاهم ځانګړی حيثيت لري همدا راز نږدي زرکاله د مخه مسلمانان په هندوستان کې ميشت دي که دوی پر خپل لباس نه وای دريدلي نو اوس به يوازي په هند کې نه بلکي د ځمکي پر سر به د مسلمانانو نوم او نښان نه وای پاته مسلمانان نه يواځي چې پر خپل يونيفارم ګلك دريدلي بلکي نور يې هم دي ته اړ کړل ... چې شمير يې تر ميلنونو اوړي خپل پرتوګ قميص پکړی. ټول محفوظ وساتل مذهب نو مونه کلتور رسم رواج ژبه او نور شيان ټول يې محفوظ کړل. همدا سبب دی چې دوی د يوه مستقل قوم په حيث په هند کې پاته دي ترکومه چې دا لباس وي دوی به وي اوکه يې پريښودل نو بيا به دوی هم ورك وي هر قوم چې کله ترقي کړيده دا کوشش يې کړيدی چې د هغه يونيفارم د هغه د مذهب ژبه پر نورو غالبه په قومونو او هيوادو کې وغوړيږي.

که څوك د فارسيانو کلدانيانو عبرانيانو د تاريخ مطالعه وکړي د يهودو او عسائيانو انقلابونه په غور وګوري نو هغه

ټول همداسي دي.

د عربو مسلمانانو او لوالعزم اعمال هم پدې ډگر کې یو ستر شاهد دی عربي ژبه یواخي د عربو د ملك ژبه ده په عراق سوریا، فلسطین، مصر، سوډان، الجزائر تونس، مراکش، فارس، لیبیا، سینګار او نورو کې هیڅوك له عربي ژبي سره اشنا نه و او نه له اسلامي دود دستور سره مگر عربو په هغو کې اسلامي یو نیفارم خپل دود او دستور خپله ژبه داسي پکي جاري کړه چې د هغو هیوادونو خلك تر اوسه اسلامي یو نیفارم تهذیب او کلتور په خپل تهذیب او کلتور او عربي ژبه خپله ژبه گڼي او په هغه ځای کې ونا مسلمانو قومونو ته تر اوسه هم دا نده معلومه چې دوی د بل قوم سره تړاو لري که وي نو محض د خوب په څیر نور هغه هم خانونه عرب بولي. له ذکر شوي یو معروضاتو څخه دا خبره په څرگنده توگه معلومه سوه چې د یو قوم او ملت په نړی کې وجود هغه وخت کیداسي چې هغه جهل ځانگړی تهذیب او کلتور ژبه او لباس ولري او پدې باندي په کلکه توگه عمل وکړي. له همدي امله ضروري ده چې د اسلام لپاره چې په نړی کې تر ټولو ادیانو غوره دین دی یو ځانگړی یو نیفارم او دستور و ټاکل سي او په همدي باندي د الله پاك تابعدار اطاعت کونکی بندگان او هغه بندگان چې دالله پاك څخه باغیان او اطاعت نه کونکی دی وپیژندل سي. همدغه حکمت د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم په مبارك حدیث کې اشاره سوي چې وائی من تشبه بقوم فهو منهم «الحدیث». په همدي وجه جناب رسول کریم صلي الله علیه وسلم د خپلو تابعدارانو لپاره یو خاص یو نیفارم ټاکلی دی او په بل ځای کې فرمائی: فرق بیني و بین المشرکین العمائم علی القلانس چې زموږ او د مشرکینو په مابین کې فرق دا دی چې زموږ پر خولیو لنگوټي دي او ددوی نسته په همدي وجه یې د اهل کتابو سره د مخالفت واضح کولو دپاره په سر کې د لاري ایستلو حکم کړی دی او هم یې تر بوجلکو یا پنډیو لاندي د پرتوگ اوږده ول منعه کړي دي چې تر څو یې له متکبریو څخه ی فرق وسي.

د نارینوو لپاره یې بیل او د ښځو لپاره یې بیل یو نیفارم ټاکلی دی او د نارینه لباس کونکي ښځي او د ښځو لباس کونکو نارینه و باندي یې لعنت ویلی دی له همدي امورو څخه یو بریتونه لنډول او د ږیري اوږدول دي لکه په صحیح مسلم او صحیح بخاري کې روایت دی فرمائی:

جزوا الشوارب وارخو اللحی خالفو المجوس = بخاري ۸۷۵

تاسو بریتونه لنډ کړی او ږیري اوږدي کړی مخالفت وکړی له مجوسو سره او بل ځای کې فرمائی:

خالفو المشرکین و فروااللحی واصفوالشوارب = مسلم

د مشرکینو مخالفت وکړی ږیري غټي کړی او بریتونه کم کړی

ددي احادیثو په څیر نورهم د حدیثو او فقهي په کتابونو کې موجود دی چې له هغو روایاتوڅخه دا معلومیږي چې په هغه زمانه کې هم مشرکینو او مجوسیانو ږیري خریلي او بریتونه یې پریښودل لکه نن چې عسائیان او هندو قوم کوي او دا کار ددوی په خاص یونیفارم کې داخل دی نو په دي وجه هم ضروري ده چې مسلمانانو ته بل یو نیفارم چې د مشرکینو یو نیفارم خلاف وي حکم وکړل سي چې ددوی په مابین کې مکمل جلاوالی راسي همدا راز بل حدیث دي فرمائی:

عشرمن الفطرة قص الشوارب عفا اللحیه = ابو داود

دا څرگندوی چې د خدای پاك له نژدي بندگانو څخه هغه څوك دی چې بریتونه لنډوي او ږیره پریږدي.

نو دا ښکاره سوه چې دا یو ځانگړی یو نیفارم دی چې الله تعالی د خپلو نژدی بندگانو نخښه بللي او هغه قومونه چې له خدای (ج) څخه لیري دي هغوی بل یو نیفارم جوړ کړی دی نو په همدي وجه ضروري ده چې په ټینگه عمل پري وسي د عقل او فکر د غوښتني مطابق هم دا ضروري ده چې یو څوك د خپل بادار صورت او سیرت دود او دستور غوره وگڼي او پر قوم اوهیواد کې دا سته نن تاسو وگوری چې په ټوله نړی کې زموږ د مذهب او دین سره اروپا ډیره ورانه ده نو له همدي امله زموږ لپاره د هغو د لباس یو نیفارم څخه کلك پرهیز او ځان ساتل پکار دي یوازي دا نه چې موږ خپله له هغه څخه پرهیز وکړو بلکي زموږ دنده او وظیفه دا ده چې نور له دغه اسلام ضد لوري څخه وسمي لاري ته را واړوو تر څو خپل راتلونکي نسلو ته هم لدې وژنکي بلا څخه وژغورو او موږ هم د خپلي وظیفي په سرته سولو کې د الله تعالی ددي مبارك ارشاد مصداق وگرځو چې فرمائی:

کنتم خیرامه اخرجت للناس تامرون بالمعروف و تنهون عن المنکر)

# د فقه او اجتهاد نابغه مخکښ امام ابوحنیفه (رح) او د وخت واکمن

د حافظ محمد لقمان (حامد) لیکنه

> عفوه او بخښنه کوه! په نیکیو امر کوه! له بې ګټې کارونو څخه ځان وژغوره! او د حق په پلې کولو کې ببړه وکړه!
> امام ابوحنیفه

امام ابو حنیفه رضی الله عنه په تولیزه توګه د وخت د واکمن (عباسي خلیفه) ابو جعفر المنصور له سیاست څخه نارازه و دا ځکه چې منصور له خپلو مخالفینو سره ډیره سختي کوله او هیڅ زړه سوی یې نه پرې کاوه.

دده له علویانو سره زیاته دښمني وه تر دې پورې که چا به له هغوی سره څه اړیکې ولرلی نو هغه هم منصور د خپلو دښمنانو په لست کې ځای کاوه. امام ابو حنیفه د اسلامي امت د نورو نامتو علماو او پوهانو په څیر له علویانو سره خواخوږی لرله. او بل دا چې نوموړي امام په فتوا ورکولو کې ډیر تیز او زړور و په ډکه خوله به یې غږیدی په منصور به یې نیوکې کولې د هغه والیانو او قاضیانو به که څه غلطه پریکړه کړې وه نو دا لوی امام د هغو په وړاندې چوپ نشو پاتې کیدای. او په زغرده به یې نیوکې پرې کولې. ځکه امام میړنی عالم او زړور مومن و، او داسې فقیه و چې په شریعت یې ټینګې منګولې لګولې وې. د حق په خبره کې د واکمنو له زور او زور واکۍ څخه نه و یریدی. ددعوت په لاره کې انحراف او کږوالی نه پیژاندی ابوجعفر منصور هم د امام ابوحنیفه په فکر او سیاست پوهیدی هغه پوهیدی چې دا حق پالونکی فقیه نشي چوپ کیدلای او په دې هم پوهیدی چې د علماو ژبې د غصې په حالت کې هغه کار کوي چې تیره توره یې هم نشي کولای.

بل لور ته امام ابوحنیفه د مسلمان امت د زړونو واکمنی په لاس کې لرله هغوی له ده څخه فتواوې غوښتې دده علمیت او غوره سیرت هغوی ایل کړی وو. منصور غوښتل امام ته ځان نږدې کړي خو امام بیا د واکمنو نږدیوالی نه غوښت. ځکه دی پوهیدی چې د واکمن دا تمایل او انعطاف د خدای (ج) له پاره ندی بلکې غواړي ما چوپ کړي تر خپلو احساناتو مې لاندې کړي او اخر یو درباري ملا ورڅخه جوړ کړي چې د واکمن له کړنواو اشارو سره اسلامي احکام ګرد چاپیره ګرځوي.

نو دامام ابوحنیفه ددې سالم دریځ په وړاندې او ددې نوماندلو وتلي مجتهد او فقیه په خلاف منصور نشوای کولای په څرګند ډول په هغه تیری وکړي بلکې د څه پلمو په جوړولو سره یې د هغه ربړول او زورونه پیل کړه. مخکې مو وویل چې امام ابوحنیفه به په قاضیانو په څرګنده توګه نیوکې او اعتراضونه کول چې یو له هغو قاضیانو څخه ابن ابي لیلي دی چې امام صاحب کلکه نیوکه پرې کړې وه. قاضي ابن ابي لیلی په یوه لیونۍ ښځه دوه حده جاري کړل دا ځکه چې لیونۍ یوه سړي ته ویلي وه چې «ای د زاني او زانیې زویه!» په دې خبره په هغې باندې قاضي ابن ابي لیلی په جومات کې دننه دولاړې په حالت کې دوه حده (یوه د مقذوف د پلار او بل د مور له پاره) جاري کړل. د ابن ابي لیلي په دې پریکړه باندې امام ابو حنیفه خبر شو نو ویې ویل: په دې فیصله کې قاضي صاحب شپږ خطائی کړې دي. حد یې په جومات کې قائم کړی او په جوماتونو کې حدود قائمول نشته په ښځه باندې په ناستې حد جاري کیږي او ده په ولاړې، د مور او پلار له پاره یې بېل بېل حدونه ورکړي دي خو که چیرته په یوه ډله خلکو هم یو کس قذف ووائی یو حد به ورکول کیږي، او بل یې دوه حده په یو ځای ورکړي دي او دا نارواده ځو چې په یوه کې تخفیف نه وي راغلی بل حد ورکول نارواء دي او بل ښځه

لیونی ده او د لیونیولو پاره حد نشته او بل دا حد د مقذوف د مور او پلار له پاره جاري شوی خو هغه نشته او غایب دی او د دعوی له پاره ندی حاضر شوي او دا نه صحی کیږي.

ابن ابي لیلی منصور ته شکایت وکړ هغه و چې منصور په ابو حنیفه بندیز ولګاوه چې د څه وخت له پاره به فتوی نه ورکوي او له دې ځایه څخه د ابو حنیفه د کړاوونو لړۍ پیل کیږي

منصور امام ته تحفې لیږي او هغه یې ردوي دا کار منصور په دې موخه نه کوي چې ګواکي له امام ابو حنیفه سره یې مینه وه بلکې په دې خاطر چې په څه ډول وي خو هغه ګرم کړل شي ابو جعفر منصور امام ابو حنیفه ته لس زره درهم او یوه مینځه په تحفه کې ولیږل خو امام صاحب بیرته رد کړل د منصور وزیر عبدالملك بن حمید امام صاحب ته د هغه د تحفې د ردکولو په وخت کې وویل: په خدای مې لوبتلي یې! امیرالمومنین له تاڅخه څه اندیښنه لري که ته یې تحفه ونه مني نو د هغه اندیښنه به ربښتیا شي خو امام صاحب بیا هم تحفه ونه منله منصور څوك ورته راولیږل او پوښتنه یې ځني کړي وه چې ولې یې تحفه نه مني؟ امام صاحب څومره ښه ځواب ورکړ: ماته که امیرالمومنین له خپل مال څخه تحفه رالیږلي وای نو ما به هیڅکله نه وه رده کړې. خو امیرالمومنین ماته د بیت المال څخه تحفه رالیږلي او د مسلمانانو په مال کې زه حق نلرم زه مجاهد نه یم چې له بیت المال څخه روپۍ واخلم. او نه د مجاهدینو له زامنو څخه یم او نه هم فقیر یم چې په بیت المال کې دې حق ولرم. خو وروستۍ خبره چې د منصور غصه یې اوج ته ورسوله او نور یې د ابوحنیفه تغذیبولو او کړولو له پاره ښه بهانه وبلله هغه د ابو حنیفه له قضا څخه انکار کول د هغه د زورولو له پاره ښه دلیل باله او په دې سره یې عوامو ته هم خوله جوړه شوه هغه عوام چې د خبرو برسیره مخ ته ګوري او له حقیقته نا خبره وي. ابو حنیفه د عراق د فقهاو سر خیل او د علم بې پایه سمندرو هغه په ظاهره منصور ته عذر کاوه چې د قضا وړ ندی خو په حقیقت کې یې موخه بله وه هغه دا چې که د حکومت قضا ومني نو د حکومتي کړیو دا خل به وبلل شي او بیا به یې نو خوله تړل شوې وي د حکومت نارواته به بند نشي ویلای او چې واکمن څه کوي دی به یې ورسره مني او ان چې د فتوای او حقانیت ټاپې به هم پرې لګوي. نو لدې کبله هغه له قضا منلو څخه کلك انکار وکړ. کله چې منصور و غوښت او د قضا منصب یې ورته وړاندې کړ نو ده د منصور غوښتنه رد کړه راځی دا داستان د نوموړي امام له خپلې خولې واورو:

(.... دی ما قضا ته وربولي خو ما پوهه کړ چې زه د قضا وړ نه یم زه په دې نه پوهیږم چې شاهدان په مدعی دی او سوګند په منکر دی. دی د قضا له پاره داسې سړی غواړي چې دده او دده د ځواکونو په ګټه حکمونه کوي او دا زما په وس کې نشته دی ما ځان ته ورنږدې کوي خو زه غواړم چې ځنې لرې یم) بل ځای منصور د قضا کولو ټینګار ورته کوي خو دی ورته وائي: له خدایه ووېرېږه! دا امانت ماته مه سپاره! زه په عادي حالاتو کې په ځان باور نلرم نو د غصې په وخت کې کله ځان کنترول کولای شم؟ که ته ما تهدید کړې چې یا به قضا قبلوې او یا به دې د فرات په سیند کې غرقوم. نو زه دا ښه بولم چې ځان په فرات کې غرق کړم. نو بناءً زه د قضا له پاره مناسب او وړ نه یم. منصور ورته وویل: ته دروغ وائی ته د قضا له پاره مناسب یې او کولای یې شي. امام صاحب ورته وویل: خبره دې فیصله کړه چې زه درواغجن یم نو بیا ته ولې درواغجن قاضي مقرر کوې؟ نو په دې ځای کې منصور ته خپلې حوصلې ځواب ورکړ او د هغه کړول او تعذیب یې پیل کړ. داود بن راشد الواسطي وائي: کله چې امام ابوحنیفه له قضا څخه انکار وکړ نو منصور هغه بندي کړ او هره ورځ به یې عام محضر ته را ایستلو او لس دورې به یې واهه تر دې پورې چې لس باندې سل دورې یې وواهه او په دې حال کې به یې هم ورته ویل چې قضا قبوله کړه خو ده به نه منله کله یې چې ډېر وواهه نو ده به په ورو له ځانه سره دا دعا کوله: یا خدایه! په خپل قدرت سره مې له شره وژغوره او په اخیر کې یې وژونکي زهر ورکړل او مړ شو دا روایت خطیب بغدادي په خپل کتاب (تاریخ بغداد) کې را خیستی خو نور روایتونه بل ډول راغلي او ابوالبزاري د ابو حنیفه په مناقبوکې وائی چې منصور دی له وهلو وروسته څه وخت په بند کې وساتو او وروسته یې خلاص کړ نو په دې شرط چې فتوی به چاته نه ورکوی له خلکو سره به خبرې نه کوي او له کوره به د باندې نه وزي. او په دې حال کې په کال ۱۵۰ هـ کې وفات شو رحمه الله تعالی. لوی امام ابو حنیفه رضي الله عنه د وخت له واکمنو سره د هغوی په مظالمو کې ګډون کول نه غوښتل او په دې دریځ دومره کلك ولاړ و چې د بندکیدو سپکاوی، وهلو، تړلو، نظربندی او ان مرګ (که دا یو روایت صحی شي) پروا یې هم ونکړه دی لوی امام چې د قران او حدیث د علومو څومره خدمت کړی په هغه سره نن تقریباً دریمه برخه اسلامي نړۍ روښانه ده او دده د مذهب په پیروي ویاړي. خوله دې سره یې د جهاد او سیاست په ډګر کې هم د سرښندونکو مجاهدینو په څیر خورا لویه کارنامه پرې ایښې د ظلم او زور په وړاندې ندی تسلیم شوی. روح دې ښاد وي او رب دې ځني رازي وي

*ماخذونه*: ۱ - مناقب ابي حنیفه - لابي البزاري ۲ - تاریخ بغداد - الخطیب البغدادي - ۳ - المناقب - لابي طالب المکي ۴ - الاسلام - البدري

سرمحقق سید امین ( مجاهد)

# د کوه نور الماس د تاریخ په بهیر کې

لنډه تاریخچه : دغه الماس د نړۍ د ډېرو مشهورو الماسونو د جملې څخه دی ، چې انګلیسان یې د الماسونو "پاچا" بولي نو موږ الماس د خپلو روښانه وړانګو او بې نظیره ځلا له امله نړیوال شهرت لري .
له تاریخي کیسو او د هند د لرغوني افسانو نه دا جوتیږي چې د نن نه پنځه زره کاله وړاندې دوکارنامي د سوریاب النوع او د هند ستر پهلوان ، لومړنی شخص و ، چې د کوه نور الماس یې پیژندلي او د ځان سره یې ساتلي دي . هغه به تل دغه الماس د خپل ښي مټ لوري تړلي و .

د حضرت عیسی ( ع ) د زیږیدو نه سل کاله وړاندې دغه الماس د هند د راجا ( اویه ییین) لاس ته ورغی چې بیاوروسته په هندکې دافغاني سلسلې دواکمنانوڅخه شهزاده علاوالدین محمد خلجي ( غلجي ) هغه د (مالوا ) د راجا یا واکمن څخه و پیرود او ډهلي ته یوړل شو چې د لودیانو د لړۍ څخه نیولي بیا تر سوریانو پوري ، نوموړی الماس د هند د افغاني واکمنانو په کورنیو کې وساتل سو ، خو کله چې په ۹۱۳ عیسوي کال لودي ابراهیم د بابر د یرغل په وړاندې د خپل پوځ په لومړۍ لیکه کې په پوره مېړانه و جنګید او په پای کې یې د شهادت جام په نصیب سو نو بابري سپاهیانو نوموړی الماس دده د ښی مټ نه را خلاص او بابر ته یې وسپاره

تر بابر وروسته د هغه زوی همایون او تر هغه وروسته په وار سره بیا د هغه اولادې اورنګزیب شاه جهان او محمد شاه ته ورسید . خو کله چې نادر افشار د خپلو سوبو په ترځ کې دهلی ونیوه نو الماس هم د هغه لاس ته ورغی .

په ۱۷۴۷ میلادي کال کله چې نادر افشار د خپلو لښکرو له خوا په خبوشان نومي ځای کې ووژل سو او یاغي پوځیانو غوښتل چې په حرم باندې یې تیري وکړی او بې پته یې کړي ، نو د پاچهی ګارد د یوې برخې مشر ، افغاني باتوره ځلمي ، ابدالي احمدخان د هغوی د تیري مخه ونیوله او د نادر افشار حرم یې په ډېر عزت

د تاریخ پاڼه
کابل

او افغاني غیرت ددغه یرغل نه په امان وساته ، چې په بدل کې یې د نادر افشار د میرمني له خوا د هغو دوو سترو الماسونو د جملې څخه چې یو یې دکوه نور او بل یې د دریای نور په نامه یادیدل او ورسره وو، د کوه نور الماس د یو دانه بې نظیر فخراج ( غمي ) سره یو ځای غیرتي احمدخان ته ور وبخښل چې دا دواړه جواهره نژدې ۲۶ کاله د افغان واکمن ، ستر شاهنشاه لوی احمدشاه په ولکه کې وو چې بیا وروسته یې زوی تیمور شاه ته ورسیدل چې تر ۱۲۰۷ قمري

کال پوري د هغه سره وو او د تیمورشاه تر مړینې وروسته یې د هغه د زوی شهزاده زمانشاه پوري اړه پیدا کړه .

کله چې په ۱۲۱۶ قمري کال د شاه زمان ځواکونو په غزني کې د شاه محمود د پوځ د قوماندان وزیر فتح خان له لاسه ماته وخوړه ، شاه زمان اړشو چې د خپل ورور شجاع الملك نه مرسته وغواړي چې د پېښور والي و . نوموړی په همدې هیله د جلال اباد په لور ور وخوځید خو جګدلك ته نژدې د یولنډ استراحت په نیت د ملا عاشق الله شنواري کلا ته ورننوت . که څه هم نوموړی ظاهرا د شاه زمان ښه استقبال وکړ خو په پټه یې هغه کلابند او د انعام د تر لاسه کولو په خاطر یې شاه محمود ته چې تر دې مهاله یې نیولی و ، خبر ورکړ . سره له دې چې شېبه وروسته شاه زمان د ملا عشق شنواري په نیت پوه او ډېرې هلي ځلي یې وکړي چې ځان د هغې د سیسي او نیرنګ نه خلاص کړي خو تدبیر د تقدیر مخه ونشوه نیولی ، شاه زمان د ورور له خوا اسیر او ړوند کړای سو .

د تاریخ سلطاني په حواله شاه زمان د ملا عاشق شنواري په کلا کې د خپل اسارت په مهال د کوه نور الماس او د فخراج غمی د ځان سره درلود ، د کوه نور الماس یې هلته د کوټې د دیوال په یو درز کې پټ کړ او د فخراج غمی یې د لښتي ( ویالي ) اوبو ته ور وغورځاوه پاته په ۱۵ مخ کې

# د جنوب لویدیځ زون د تنظیمه رئیس او کندهار والي ملا محمد حسن (رحماني) سره مرکه

پوښتنه: محترم والي صاحب که په مجموع کې د جنوب لویدیځ زون او په خاصه توګه د کندهار ولایت پراقتصادي وضعه یو څه رڼا واچوی مهرباني به مو وي؟

ځواب: و ټول جهان ته معلومه ده چې افغانستان د شلو کالو په دوران کې چې ډیر ناخوالي یې لیدلي اقتصاد یې وران شوی دی خو الحمد الله د اسلامي امارت په ښه توجه سره د خلکو په همکاري اقتصادي وضعه ډیره ښه شوي ده

هغه داسي چې د زراعت په سیستم کې ښه پرمختګ شوی دی، غټ کڼالونه چې د اوبو د تیریدو ظرفیت یې درلودی هغه پاك شوي دي او داسي نوري مځکي چې زابران یې د اوبو زیم خراب کړي وه هلته زابران کار شوه نو زراعت ورسره قوی سو اوّ د تجارت په باب هم ډیر پرمختګ سوي دی چې مخکي تر اسلامي امارت تجارتي وضعه ډیره خرابه سوي وه او د خلکو کار او بار بیخي له فلج سره مخامخ وو د افغانستان د اسلامي امارت په ښه توجه چې په لویو لارو کې یې امنیت را وستلی او د خلکو مال او ناموس یې ساتلی دی نو خلك تجارت ته متوجه سول چې اوس په ښه اعلی درجه تجارت کیږي هغه هم د ملك لپاره پدې مانا فایده ده چې مختلف اجناس واردیږي و داخل ته او خپل مالونه لکه وچې میوي او نور مواد و خارج ته صادریږي په دي مورد کې تر ډیره حده کار سو دی او بل او بل داچي فابریکي ټولـه د بریښنا د نیستی او نورو تخنیکي عوارضو له امله فلجي ولاړي وي، د برق په را وستلو سره ډیر فابریکي فعاله سوي چې ډیري کوچنی او غټي فابریکي خپل اجناس تولیدوي او و بازار ته یې د خلکو په خدمت کې وړاندي کوي په همدې سره یې د خلکو د روزګار زمینه برابره کړي ده

پوښتنه: د بدنامه کمونستي کودتاه د جریان پر مهال و جنوب لویدیځ زون ته په عمومي توګه او د کندهار ښار ته په خصوصي توګه په بیلا بیلو برخو کې زیاته صدمه رسیدلي ده د اسلامي امارت له استحکام څخه وروسته مو یې د بیا رغوني لپاره کوم اقدامات کړي او هم کوم کارونه په نظر کې لری؟

ځواب: د کندهار ښار تقریبا سابقه د کمونستانو په دوره کې د څوارلس کاله جنګ په دوران کې بیخي خراب سوي و او هر سیستم یې له مینځه تللیو اسلامي امارت برق ورته را ورسوی په ډیر تکلیف سره یې چې وسایط یې هم د رباني دوران کاري اداري له خوا له منځه تللي وه یعني په نورو بازارو کې یې کباړ کړي وه خو موږ هغه زاړه او د کاره لویدلي وسایط په کار واچول او د برق د راوستلو کار مو ورځني واخستی د اوبو سیستم هم بیخي فلج و ځکه د اوبو په سیستم کې هم برق ته ضرورت و نلدوانی سیستم یې هم خراب سوی و نو موږ

وکړای سول چې کور کور د اوبو د اسانتیاوو څخه برخمن کړو او ډیري برمي مو په ښار کې کیندلي دي چې له هغه سره اوس په ښار کې ددې وچکالی په شپو کې هم د اوبو ستونزه له منځه تللي په دې مورد کې نور د ښار د اولسي خلکو په توجه سره نوي مارکیټونه چې هغه د خلکو د روزګار ښه ذریعه ده چې په هغه هم ورته یو کار پیداکیږي که بیا دوکان جوړیږي او مارکیټ فعاله کیږي بیا هم د خلکو د بې روزګاری مخنیوی په کیږي، داسي نوري فابریکي په ښار کې فلج وي هغه هم فعاله سوې ځیني د اولسي خلکو له خوا او ځیني نوري یې بیا د اسلامي امارت په توجه سره فعاله دي او بل دا چې هر چا ته معلومه ده چې پدې څوارلس کلنه غمیزه کې د ټلیفون سیستم له مینځه تللی وو الحمد الله د اسلامي امارت په خاصه توجه سره له ټولي نړی سره د کندهار له ښارڅخه څوك رابطه نیولی سي او ډیر تعداد لینونه توزیع سوي دي او بل دا چې ترانسپورتي اسانتیاوي بیخي له مینځه تللي وي له ښار د یوي برخي څخه بلي برخي ته او یا له ښار و بل ښار ته تګ ډیر مشکل و ځکه چې وسایل چا شخصي نه سوای استعمالولی د وسایطو دکمبود له امله خلګ دې ته مجبور وه چې هیواد پریږدي خو د افغانستان د اسلامي امارت د حاکمیت وروسته خلګ دې ته تشویق سول چې مختلف وسایل خریداري

کړي او هنه په ښار کې او یا له ښار دباندي و نورو ولسوالیو ته چلیږي چې دا د مریضانو په رسیدګي او تجارت او نورو ضروریاتو کې ښه ګټور او مثبت پرمختګ دی بل دا چې د کندهارد ښار سابقه نفوس چې و هغه ډیر کم و اوس ډیر زیات سوی دی نو په مختلفو ناحیو کې نوي نوي ابادی سوي دی چې هغه د ښار د ښائست سبب هم ګرځي او د اولس کوم سابقه مشکلات چې له دوی سره وه هغه هم حل سوي او بل دا چې په کندهار کې د صحت لپاره بیخي هیڅ مرکزونه نه وه پدې برخه کې هیڅ کار نه و سوی ، روغتونونه ټوله وران وه خو اوس دلته په ښار کې میرویس روغتون چې هغه غټ روغتون دی فعاله دی ، هر نوعه عملیات چې څوك یې وغواړي پکښې کیږي او بل نظامي روغتون د مستشفی عمر په نامه چې هغه هم د نظامي خلګو په خدمت کې دی مجاهدین پکي تداوي کیږي او نور شپږ اووه نوي کلینیکونه چې څلور یې د ښځو د تداوی لپاره دي او د نارینو لپاره هم استعمالیږي دا فعاله سوي دي پدې اړه ډیره توجه سوي ده چې د صحت په برخه کې کار وسي نو له همدي امله مو ډیر نرسان او ښځینه قابلي هم روزلي دي او د ډاکټرانو سره مو ددوی په معاش او نورو د ضرورت وړ شیانو کې پوره همکاري کړي ده او د ښار فرعی سړ کان چې د ښار له یوې برخي و بلي برخي ته غځیدلي وه عمومي سړکان چې له ښاره دباندي وتلي وه هم ښه جوړ سوي دي .

**پوښتنه : لکه څنګه چې د رواني اوړدي وچکالۍ له امله زموږ هیواد وال د سختو مشکلاتو سره مخامخ دي چې ډیر اثر یې په جنوب لویدیځ زون کړی دی نو تاسي په دې اړه کوم اقدامات کړي او څه مرستي مو ورسره کړي دي ؟**

ځواب : په دې مورد کې اسلامي امارت ډیر لوی خدمت کړی دی هرچا ته معلومه ده چې کال وچ و وابنه نه وه کوچیان چې د کندهار و جنوب طرف ته اوسیدل چې ډیر پسونه او اوښان او نور حیوانات یې له تندي او لوږي مړه سول نو اسلامي امارت د غټو موټرانو پواسطه هغه له ریګو څخه ابادو سیمو ته را انتقالول چې نور یې ټول شیان له لاسه ورکړي وه فقط دی او خپل ګوډران سره پاته وه چې د کوچیانو د انتقال پرو خت ډیر لوی مصرف وسو چې د سلو زیات موټران د کوچیانو په خدمت کې اوسیدل چې حتی کوچیانو ته به یې په څرخکو کې اوبه او خواړه ور رسول که چیري اسلامي امارت منظم نه وای او یا یې دا د خیر او ژغورني کار نه وای کړي نو بیا به هیڅکله دومره په زیاته پیمانه خلګ له مرګه نه وای ژغورل سوي ډیر لږ خلګ به ژوندي پاته سوي وای نو زموږ سره چې کوم وس او توان و هغه مو ورسره وکړی دلته مو هم د خپل وس سره سم د اوسیدلو ځایونه او خوراکي مواد پیداکړل او بل دا چې دلته د کندهار په ښار کې د څښلو اوبه هم بیخي نه وي ، خلګ د اوبو د مشکل سره مامخ وه اسلامي امارت د ابرسانی سیستم فعاله کړی او په نورو شاو خوا ولسوالیو کې مو هم برمي وهلي دي چې ټولي تر ۳۰۰ سوه برمو زیاتي برمي مو وهلي دي هغه خلګو ته په مساجدو او کلیو کې اوبه ورکوي ددې لپاره موږ په ولایت کې کمیټه جوړه کړې هرڅوك چې وغواړي د وچکالۍ ځپلو خلګو سره مرسته وکړي نو هغه مرسته کوي او موږ بیا داخیریه کارونه په کوو چې د برمو ماشینانو مو په اخیستي او نور د برمو پیپونه او وسائل هم ورباندي اخلو .

**پوښتنه : دلته په کندهار کې یو شمیر نړیوالي خیریه موسسې هم لیدل کیږي د بیا جوړوني او انکشافي کارونو په تر سره کولو او په خاصه توګه د وچکالۍ په سختو شرایطو کې ددی رول څومره مؤثر بولی او په کارونو یې څومره مطمئن یاست ؟**

ځواب : د خیریه موسساتو چې کوم مسولیت دی هغه یې سم سرته ندی رسولی هسې نه وایو چې دی خدمت کړی دی ځکه U.N چې څومره مسولیت لري هغه دا چې د اسماني افاتو په وخت باید دوی عاجل کومك وکړي په ټوله افغانستان کې په خاصه توګه په جنوب لویدیځ زون کې چې ډیره وچکالي ده او دوی ته د مرستو ډیر ضرورت پکارو چې دوی ته یې رسیدګي کړي وای پکار و چې خلګو ته یې اوبه رسولي وای او نور خوارکي مواد یې ورکړي وای او د خلګو د بې روزګاری په خلاف یو څه سوي وای او خلکو ته غذای مواد دومره چې ورته ضرورت دی رسیدلي وای خو ډیر په سستۍ سره یې کارونه کړي دي که یې کړي دي هغه ډیر غیر مؤثر بې کفایته دي خو تر یو څه حده پوري که کار کوي هغه هم د اوس لپاره څه څه کار وجود لري خو د خلکو د احتیاج د پوره کولو لپاره یې ندي کړي

**په ولسوالیو کې مو هم برمي و هلي دي چې ټولي ۳۰۰ برمي کیږي**

ځکه چې د خلګو خدمت په اوس وخت کې بیخکي وسعت غواړي هغه د اوبو په سیستم کې د غذائی موادو په رسولو کې د صحت او بې روزګاری په چارو کې په خپل خپل وخت باید شوي وای ځکه که چیري انسان مړ سي نو بیا غذائی مواد څه کټه لري بیا یې نو علاج څنګه کیږي خیریه موسسات ټوله خصوصي یو ان او هغه اینجوګاني چې له دوی سره بودجي پرتي دي موږ یقین نه لرو چې دوی دي د خلګو د ضرورت د پوره کولو توجه په ښه توګه ولري .

**پوښتنه : څرنګه چې په دې وروستیو کې د عالیقدر امیرالمومنین فرمان د کوکنارو د بندیز په اړه صادر سوي دی دا چې د کښت ډیره برخه یې په جنوب لویدیځ کې تولیدیږي نو تاسي د عالیقدر امیرالمومنین د فرمان په عملي کولو کې څه اقدامات کړي او په**

اجرا کې څومره ور ځني مطمئن یاست ؟

ځواب : څرنګه چې مواد مخدره یا کوکنارو له ډیره وخته څخه رواج درلودی نو د افغانستان اسلامي امارت چې جوړ سو نو بیا هم د کوکنارو کښت رواج درلودی او د خلګو د مشکلاتو په خاطر باندي دا کښت ته تر یوڅه وخته پاته سو که څه هم موږ مواد مخدره په ډیر تعداد باندي سوځلي منشیات مو بند کړي وه چې هر راز استعمال یې چا نه سوای کړای چې یوازي کښت یې وجود درلودی خو الحمدالله د امارت اسلامي په یو فرمان سره په ټول افغانستان کې تاریاق او مواد مخدره کښت مکمل بند سو او موږ مکمل مطمئن یو چې هري ساحه هري سیمي ته چې پخوا کوکنار پکښي کرل کیدل تللي یو او د خلګو سره مو خبره کړي دي او خلګو ته مو اطمینان ورکړی دی چې دا تاریاق یو مضر کښت دی او د انسانیت لپاره ضرر دی او قطعی فیصله د امارت اسلامي د مقام سوي ده چې تاریاق دي نه کرل کیږي نو تاسو به حتمن تریاق نه کری خلګو ټولو موږ ته پوره اطمینان راکړی چې د تاریاقو د کرلو وخت تیر دی خو بیا هم هیچیري یو نښان نه لیدل کیږي چې یو چا دي هم تاریاق کرلي وي که احیانا یو ځای وکرل سي نو په هره علاقه کې موږ خپل مسولین ورته موظف کړي دي چې هغه تاریاق مات کړي خو متاسفانه د خلګو احتیاج ته هیڅ توجه نده سوي هغه وعدي چې موږ ته یو ان یا یو ان ډي سي پي له طرفه څخه اسلامي امارت ته ورکړل سوي که چیري تاریاق بند سي په مخدره موادو کنټرول ولګول سي نو به دنیا ور سره کومك وکړي د نړۍ بشر دوستان چې تش په نامه بشر دوستان دي هغه هیڅ کله نه غواړي چې دلته د مخدره موادو د بندیز لپاره کار وکړي امارت اسلامي دا دی اوس تاریاق بند کړل خو خلګ متبادیل تخم کود او هغه مواد چې هغه زراعت ته ګټه رسوي په هغه کې یې د خلګو سره همکاري نده کړي خو بیا هم د افغانستان غیور او مسلمان ملت د اسلامي امارت د هر فرمان تابع دار دی او خپل مشکلات برداشه وي او تاریاق قطعی بند دي

پوښتنه : کله چې د افغانستان اسلامي امارت په رسمیت د نه پیژندلو یو بهانه د کوکنارو د نه کرلو هم ده اوس چې د کوکنارو پر کښت بندیز لګیدلی نو نړیوالو په خاصه توګه ملګري ملتونو د اسلامي امارت ددې نیك اقدام په مقابل کې څه عکس العمل ښودلی دی ؟

ځواب : د ملګري ملتونو نیك عکس العمل به دا وای چې یا متبادل یو زریعه د کار او روزګار افغانانو ته برابره کړي وای چې په ښه وخت کې د زراعت کارکونکو بزګرانو دهقانانو ته یې تخمونه ورکړي وای د زراعت سیستم یې ورته قوي کړی وای که یې اوبه کمي وای د اوبو کانالونه ورته جوړ کړي وای او ورته پاك کړي وای تخمونه او کود کیمیاوي او هغه وسایط چې په زراعت کې استعمالیږي لکه تریشل شاول او تراکتور دغه وسایط یې ورکړي وای خو امارت اسلامي ډیر په جدي توګه متوجه دی چې تاریاق په افغانستان کې بند سي دا دانسانیت ضرر دی او په دې برخه کې یې ډیر کار کړی دی خو ملل متحد هغه څه چې لازم و هغه یې ندي کړي نو هغه خلګ چې د تاریاقو پرځای غنم کري د غنمو تخم نلري کود نلري او هغه وسایط چې په زراعت کې استعمالیږي هغه نلري نو د ملګرو ملتونو هغه مسولیت یا د نړۍ د بشر دوستانو هغه مسولیت چې د مواد مخدرو پر ضد باندي په افغانستان کې کار وکړي هغه مسولیت یې هیڅ ندی پوره کړی او هیڅ توجه یې نده کړي نو موږ جدي غوښتنه د ملګري ملتو او د نړۍ د نورو بشر دوستانو څخه دا ده چې په افغانستان کې د دهقانانو او بزګرانو سره په ډیره چټکی سره کومك وکړي او د زراعت هغه سیستم ورته قوي کړي چې د کوکنارو پر ځای و دوی ته هغه متبادل سي ، کافي وګرځي

پوښتنه : په اخر کې د جنوب لویدیځ زون مجاهد اولس له اسلامي امارت سره د اسلامي نظام په ټینګښت ، د سولې په تطبیق او د هیواد د بیا رغونې په کار کې څومره همکاره دي او تاسو څومره ورځني مطمئن یاست ؟

ځواب : دا خو ښکاره خبره ده چې افغانان دتنظیمي جنګونو او د چوکیو د پیداکولو په صورت کې چې کوم جنګونه او له هغه څخه ډیر تنګ راغلي و زراعت په تجارت سر او مال هرڅه د ملك شتمني به یې له بینه تللي وي او خلګ هجرت او فرار ته مجبور وه نو د اسلامي امارت د راتلو په برکت سره او د غیور افغاني ولس د توجه سره نن هغه دی چې په افغانستان کې اسلامي نظام قایم دی او د اسلامي امارت سره ټول ولس او ټوله افغانان اوږه په اوږه ولاړ دي او ټول هیوادوال په خپل هیواد کې صلحه او امنیت لازم بولي او افغانستان د افغانانو کور دی هرڅوك په دې خپل کور کې امنیت غواړي دلته چې کوم تجاران تجارت کوي او ژوند لري نو د خپل صنعت ، تجارت او هوسا ژوند لپاره له اسلامي امارت سره اوږه پر اوږه ولاړ دي او ډیر په میړانه د هر خارجي مداخله ګر مقابله کوي او د هر هغه چا چې په افغانستان کې د شخصي منافعو لپاره افغانستان په اور کې اچوي او په ابدي جنګ یې اخته کوي نو د هغه سره مقابله کوي نو موږ سل په سله کې مطمئن یو چې د افغاني ورونو څخه چې له موږ سره یې د اسلامي نظام په قایمولو او د امنیت په راوستلو او د سولې په ټینګولو کې زموږ اولس زموږ سره اوږه پر اوږه ولاړ دی پای

لیکنه : جنرال مرزا محمد اسلم بیګ د پاکستاني پوځ پخواني لوی درستیز
ژباړه : ملا عنایت الله (کاکا زاده)

# د طالبانو بریالی پوځي ستراتیژي ته کتنه

پنځه کاله وړاندي چې کله طالبان له کندهار ته را پاڅیدل نو ډیره په چټکۍ سره یې نژدي په ټوله سیمه خپلي منګولي ټینګي کړي او د هیواد دننه حاکمو مخالفو ځواکونو یو په بل پسي جوخت وسلي په ځمکه کیښودي او یا یې هم د ټینښتي لاره غوره کړه او په دې ترتیب باندنیو لاس وهونکو کړیو داسي سپیره ماتي وخوړه چې ټوله نړۍ ورته ګوته په غاښ پاتي شوه . هغه طالبان چې موږ بې تجربي او له پوځي ستراتیژۍ نه بیخي نا خبره بلل څنګه په معجزا ته ډول وتوانیدل چې په درنو وسلو سمبال جنایتکاره ډلي تیلي وځپي . حقیقت دا دی‌چې دا هرڅه د طالبانو د بریالی پوځي ستراتیژۍ کمال دی او بس

د طالبانو د بریالیتوب او د هغوی د پوځي تکتیکونو په لوړوالي او کره توب د ښه پوهیدو لپاره په لنډه توګه لاندي څیړنه اړینه بریښي .

لومړی مرحله : د کندهار غزني او جلال اباد د سیمو له نیولو وروسته طالبانو د شمال لویدیځ خواته مخه وکړه او په ۱۹۹۷ میلادي کال کې یې د ټولي سیمي تر لاندي کولو وروسته د ایران د خطرناکي لاسوهني له امله له هغه هیواد سره د افغانستان پولي وتړلي مګر ایران بیا هم په افغاني چارو کې لاسو هنه بنده نه کړه او د تاجکستان له لاري یې د شمالي تلوالي پاتي شونو ته چې په مزار او هزاره جاتو کې یې یو څه تحرك درلود دالوتکو په وسیله پوځي سامانونه استول او په دې ډول یې د جګړي اورته لمنه وهله . دغه مهال روسیې هند ، تاجکستان او ازبکستان هم د خپلو شومو غرضونو د لاسته راوړلو لپاره له ایران سره لاس یو کړ او خپلو لاسوهنو ته یې زور ورکړ .

دوهمه مرحله : طالبانو د ۱۹۹۸ میلادي کال د جون په میاشت کې د مزار شریف او هزاره جاتو پر لوري پرمختګ پیل کړ او د پنځو میاشتو په موده کې یې دغه ټوله سیمه لاندي کړله . له دغو فتوحاتو سره سم د شمالي تلوالي د وحدت مزي هم سره وشلیدل . احمدشاه مسعود دغه حالت په لیدلو سره په خپله د تلوالي د مشر تابه واګي په لاس کې واخستلي . مسعود چې لویدیځه نړۍ ، روسیه ، هند ، منځنۍ اسیا او ایران یې د یوه وتلي پوځي ستراتیژیك په بڼه پیژني د پنجشیر ، کندوز ، تخار او شمال ختیځ په سیمو کې خپل موقعیت ښه ټینګ کړ او یو ځل بیا یې طالبانو ته یو نوی چیلنج را منځته کړ . یو داسي چیلنج چې طالبانو ورسره غاښ چیچل اړین ګڼل .

دریمه مرحله : مسعود په دې پوهیدلی وو چې طالبانو یې‌دا ځل د تغر د ټولولو تابیا کړیده ځکه یې نو له خپلو پالونکو نه په لویه شمیره کې درني وسلي او مهمات تر لاسه کړي وو او نژدي ګام په ګام یې ددفاع اوجګړي تاکتیك طرحه کړي وو . د ۲۰۰۰ میلادي کال د مئ په میاشت کې طالبانو د کابل د شمالي جبهې له لاري و غوښتل چې ځانونه تر پنجشیره پوري ورسوي مګر د سختو ځاني او مالي تلفاتو د زغملو سره سره په دغه کار ونه توانیدل . ویل کیږي چې طالبانو په دغه جګړه کې خپل څلور سوه جنګیالي له لاسه ورکړل . طالبانو یو ځل بیا د کابل په شمال کې په خپل پخواني موقعیت کې د مورچو په ټینګولو لاس پوري کړ . د سپتمبر په میاشت کې طالبانو د مسعود په خلاف یو داسي ډراماتیك پرمختګ پیل کړ چې د طالبانو د لوړي پوځي ستراتیژۍ یوه ښه بیلګه ګڼل کیدای شي دغه ډول تاکتیك ته په پوځي ژبه کې غیر مستقیمي ښکیلوني ستراتیژۍ یا Strategy Approach of Indirect وائی . طالبانو دا ځل د کابل د شمالي د جبهې نه نژدي دري سوه کلو متره لیري په شمال لویدیځ سیمو کې د Deep Out Flanking Manoevre ژورو او صعب العبوره لارو د مانورو د تکتیك په کارولو او سختو لارو په وهلو سره د نهرین بورکه او اشکمش مهمي سیمي ونیولي اوشمالي تلوالي یې د اکمالاتو او ټرانسپورټیشن له دریو خورا پوځي ارزښتمنو لویو لارو نه بې برخي کړه . دوه اونۍ وروسته یې د کندوز او اشکمش په استقامتونو بریدونه پیل کړل چې په پایله کې یې د تالقانو مهم ښارګوټی ترڅنګ د خواجه غار ، امام صاحب ، دشت ارچي او شیرخان بندر سیمي هم ونیولي طالبانو خپل پرمختګ ته ادامه ورکړه او داکتوبر

د میاشتي ترنیمائی پوري یې د فرخار تنکی تر لاسه کړ، مسعود ددغو ماتو لـه خوړلو نه وروسته خپل پوځي مرکز بهارك ته ولیږداوه.

د اکمالاتو د دریو لویو لارو له لاسه وتلو نه وروسته شمالي ټلوالي د خپلي بقا د تامین لپاره پوځي مرستي یواځي د درواز او اشکاشم لـه لاري نه تر لاسه کولای شي چې له یوې خوا ډیري اوږدي او له بلـه پلوه صعبه‌العبوره دي. داسي بریښي چې طالبانو بـه د اشکاشم او درواز د لارو د نیولو او د پنجشیر د دري د محاصره کولو لپاره د ژمي نه وړاندي د فیض اباد په لوري خپل پرمختګ پیل کړي.

شننه: د طالبانو اوسنیو فوق العاده او ډراماتیکو پرمختګونو روسیه، ایران او تاجکستان سخت وراخطا کړیدی او پـه اوسنیو شپو ورځو کي یې پـه دوشنبه کي پـه یـوه ګډه کاري غونډه کي پریکـړه کړیده چې پـه افغانستان کي د جګړي اور باید مړکیدا تـه پري نـه ښودل شي او ددي هدف لپاره پـه کار دي چې د نظامي او لوژستیکي مرستو پـه ورکـړه سـره د طالبانو د مخالفینو ملا مضبوطه کړای شي. خوله دي هرڅه سره سره دا واقعیت پـه خپل ځای دی چې پـه افغانستان کي باندنی لاسوهني پـه یـو مخیزه ډول لـه ماتي سرد مخامخ شوي دي پـه تیره بیا" د افغانستان پـه اړه د ایران پالیسي خو لـه یـوه مخـه د ماتي او ناکامیو او غلطو او ناقص سنجش یو شاهکار ګڼل کیدای شي.

ازبکستان او تاجکستان چې پخوا یې د طالبانو دمخالفینو د هر ډول اکمالاتو دنده په غاړه وه اوس په دې واقعیت پوه شویدي چې پـه افغانستان کي لاسوهني هیڅ ګټه نه لري. ازبکستان خو پـه وروستیو وختونو تر ډیر وړاندي تللی دی او د سوداګریزو فعالیتونو دپیل کولولپاره یې له افغانستان سره د خپلو پولو پـه بیا پرانستلو اعلان هم کړیدی. واقعیت دا دی چې لـه افغانستان سره سوله او خبري اتري هغه ګټوره نسخه ده چې د ګاونډیو هیوادونو مصوئیت تامینولای شي. روسیې د افغان تاجك پولي د ساتلو لپاره خپل پنځه ویشت زره پوځیان ځای پـه ځای کړیدي خو کله چې تیره میاشت طالبان د شیرخان بندر پـه نیولو و توانیدل نو روسي عسکرو لـه ګډي پولي نه پـه شاتګ پیل وکړ او د تاجکستان پـه دولتي کړیو کي یې دا پوښتنـه را منځ تـه کړه چې ددغـه ډول دوستانو نه څه ګټه؟چې په سخت وخت کي دی په اصطلاح دښمن تـه یواځي پریږدي.

اوس نو دا د تاجك حکومت اخلاقي دنده ده چې د ازبکستان پـه څیر لـه ازاد منشی او جرات نه کار واخلي او کټ مټ داسي اعلان وکړي لکه ازبك ولس مشر اسلام کریموف چې وکړ. پاکستان لـه ډیري مودي راهیسي پـه افغاني چارو کي پـه ژوره لاسوهنه تورن دی مګر حقیقت خو دادی چې پاکستان د خپلو نا اهلـه چارواکو لـه لاسـه پخپلـه لـه یـوي نـړۍ ستونزو سره لاس او ګریوان دی. پاکستان د ۱۹۸۹ کال د جلال اباد لـه پېښو نـه را وروسته پـه افغان چارو کي لـه نیغ پـه نیغـه لاسوهني نه ډډه کوي. پاتي شوه د طالبانو د پوځي ستراتیژۍ تر شا د پاکستاني پوځ لاس نو دا ادعا هم لکه د نورو پـه څیر بیخي بې بنسټه ده ځکـه د طالبانو او پاکستان پوځي ستراتیژۍ یو لـه بلـه سره ژور توپیر لري. پاکستان خپل پوځ تـه د عادي جګړه ایزو فعالیتونو Conventional Warfare روزنه ورکوي پـه داسي حال کي چې طالبان بیخي بل ډول او لـه پوځي پلوه لـه امکان وتلي Out Flanking ستراتیژۍ پر مخ بیائی. البته پاکستان لـه افغانستان سره د ویني او د اخوت تړون لري چې د هر ګړی پـه تیریدا سره نور هم ټینګیږي خو دا تړون د حکومتونو ترمنځ نـه بلکـي د ملتونو ترمنځ دی.

چین د افغانانو یو خواخوږی دوست دی او د خپل دغه ټیپي ګاونډي هیواد اوضاع پـه ډیر دقت سره لـه نژدې نا څاري. چین غواړي چې د افغانستان پـه بیا ودانولو کي د خپل اخلاقي رسالت تر سره کړي ودان او ټینګ افغانستان نـه یـواځي د چین اړتیا ده بلکي د سیمه ایز امنیت او استحکام د تامین تر ټولو لوی عامل دی.

امریکا هغه وخت پـه افغانستان کي د لومړی ځل لپاره لـه ماتي سره مخامخ شوه چې د شوروي اتحاد لـه تیښتي او د مزدور رژیم لـه ړنګیدا وروسته کابل د "بنسټ پالو" لاسونو تـه ولویده او دا څه د امریکا د هیلو پـه خلاف وو ځکـه نو امریکا لـه افغانستانه لاس پـه سر شوه او افغانستان پوره شپږ کاله د کورنی جګړي پـه اور کي وسوځید. اقتصادي بنسټ یې ړنګ او هیواد د اړو دوړ او انارشـی پـه ناتار کښیوت. تر دي چې د افغانانو مغروره روح را ویښه شوه او د طالبانو پـه څیره کي یې نـه یواځي دا چې طاغوتي خواکونو تـه ماتي ورکړه بلکي هلتـه یې د یوه مستحکم مرکزي حکومت ډبره هم کیښودلـه چې یواځي دریو هیوادونو سعودی عربستان، پاکستان او متحده عربي اماراتو پـه رسمیت پیژندلی دی. لویدیځي نړۍ او امریکي تر اوسه نـه یواځي چې دغه حکومت پـه رسمیت نه دی پیژندلی بلکـي د شیخ اسامه بن لادن پـه پلمه ګوتي سره یې د افغانستان پـه خلکو وژونکي اقتصادي بندیزونه هم لګولي دي.

پـه وروستیو ورځو کي خو لا داسي کنګوسي هم دي چې امریکا یو ځل بیا پـه افغانستان باندي برید تـه ځان چمتوکوي کـه دغـه ګونګوسي رښتیا وي نـو دا د

پاته په ۲۹ مخ

دریمه برخه

# د میرمنو پاڼه

د خواځک لیکنه

نوموړی فیلسوف بل ځای لیکي

(( د نارینو په کار کې د ښځمنو ګډون چې کومې ویرونکې پایلې او فسادونه زیږولي دي د هغې درملنه داده چې د نر او ښځې اساسي دندې سره بېلې شي او د هریوه له پاره خپل کار تعین شي.

په نارینو باندې لازمه ده چې ښځو ته خواړه برابر کړي دا هغه طبعی قانون او الهی ناموس دی چې د محبوب جنس ( ښځې ) اصلي ژوند په کورنۍ دائره کې محدود وي او دا هغه قاعده او اساس دی چې د ټولنیز هیئت ویرونکې او مهیب شکلونه ښائسته کوي او پوره کوي. دا هغه قانون دی چې ښځه په خپلو طبعی احساساتو سره د انساني پرمختګ پاکې دندې ته انسان اماده کوي.

نو هغه ټول مادي او علمي کمالات چې په موجوده وخت کې یې ښځې له موږ څخه غواړي بیخي ناشوني او یو مخ مجال دی ځکه دا له دې الهی ناموس او طبعی قانون سره هیڅ سمون نه خوري او دا غوښتنه له الهی ناموس سره بیخي مخالفه ده او د هغه پاخه حکمونه ردوي لدې کبله ددې طبعی ګناه له اغیزې څخه د ټولنې یوه برخه هم خوندي نشي پاتې کیدای.

تاسو پوهیږۍ چې دا د چا خبرې دي؟ دا د هغه شخص خبرې موږ را نقل کړې دي چې د علم العمران ( د بیا ودانولو پوهه ) د استادانو استاد دی او د حسي فلسفي موسس دی او هسې فلسفه هغه علم دی چې د بشریت دد ماغي پرمختګ روستي زینه شمیرل شوی ځکه د اشیاو په حقائقو باندې د محسوسو خبرو له لحاظه د حکم کولو یواځنی سم قانون همدا حسي فلسفه ګڼل شوی ده.

## سموئل سمائل

د نولسمې پیړۍ نامتو عالم د انګلستان د نوي تمدني پیر موسس چې اخلاقي لیکنې او اثار یې نن د اروپا د تعلیمي نصاب یو مهم جز دی د اروپا ټول پوهان ګواهي ورکوي چې په موږ ټولو کې ( سمائل ) د اخلاقو سرخیل او خورا لوی لیکوال دی لدې نه زیات مقبولیت به څنګه وي چې د علمي او اخلاقي ټولنو په څیر مذهبي ټولنې هم د هغه ټولې لیکنې او اثار له بائبل سره یو رنګ مني او هغه الماری او کتابخونه سپیره بولي چې په هغه کې د سمائل اثار نه وي ایښي ددې لوی دماغ څښتن، اخلاقي فیلسوف په خپل غوره کتاب ( الاخلاق ) کې د انګلستان د ازادو ښځو په حالت باندې څیړنه کړې او داسې یې لیکلي:

د پخواني روم د خلکو په نزد هغه ښځه نیکه او شریفه بلل کیده چې په کور کې به ناسته وه.

او همدا ټکي د هغې له خورا غوره صفتونو څخه شمیرل کیده زموږ په زمانه کې هم ویل کیږي چې په ښځه باندې د جغرافیې علم ځکه لازم دی چې هغه په خپل کور کې په ښه توګه او په مناسب لورې کې کړکۍ جوړې کړي او د کمسترې علم زده کړي ځکه ورته ضروري ده چې د ایشیدو په حالت کې د د یګچې سمه ساتنه وکړي. ځکه لارډ بائرن سره لدې چې له ښځو سره یې خورا زیاته مینه لرله په دې اند دی چې د ښځو په کتابتون کې دې بې له ( بائبل ) او طباخې څخه بل هیڅ کتاب نه وي خو دا رایه د ښځو د اخلاقو او تهذیب له پاره نامعقوله ده او هغوی د پرمختګ له پاره حمد ده.

ښاغلی سمائل د پخوانیو رومیانو د لارډ بائرن رایه رانقل کړې چې په واقعه کې دی هم ددې رائې پلوی کوي، روسته د اروپا ټولنیز نظر ( چې د ښځو د ازادۍ او زده کړې پلوی کوي ) را نقل کوي او هغه لیونتوب او د مدنیت ضد رایه بولي او لیکي:

ددې رائې پر خلاف یوه بله رایه هم شته چې نن په ټوله اروپا کې مشهوره ده که د پخوانیو رومیانو او لارډ بائرن نظریه د ښځو د تهذیب او اخلاقي پرمختګ له پاره ګټوره نه وي نو په حقیقت کې دا دویمه رائه هم باید جنون او لیونتوب وبلل شي ځکه د پنځ او طبیعت پر خلاف ده ددې رایې موخه دا ده چې ښځه دې دومره مهذبه او په تعلیمي لحاظ مخکې شي چې له نارینه سره یې بې له جنسي توپیره نور هیڅ توپیر نه وي او د سیاسي او ښوونیزو حقوقو له پلوه نارینه او ښځه باید یو برابر شي.

قدرت نارینه ته پر ښځه فوقیت ورکړی دی ایا دا فوقیت د ښځي له پاره غلامي ده؟ ښه پوهه شی چې ښځه له دې غلامۍ څخه په هیڅ ډول خلاصون نشي موندلای. قدرت د نړۍ ارامتیا او سوکالی ته گوري زموږ او ستاسو د نظریاتو پروا نلري د ښځي ازادي د تمدن له پاره یوړونکي پایلي را منځ ته کوي.

اوس دي د ښځو د ازادۍ پلویان ځیر شي چې قدرت ښځو ته په تمدني چارو کې څومره برخه ورکړي ده؟ نړۍ هغوی ته څومره اړتیا لري، او په څه کې اړتیا ورته لري د قدرت د پریکړو پر خلاف هڅي بیځایه دي.

دا اوس چې د معاصري نړۍ ښځي په تمدني چارو کې کومه برخه لري ایا دا فکر کول ندی په کار چې له دې ازادۍ څخه ښځي څومره خوشاله دي ایا په ریښتیا اوس ښځي د نارینو د تسلط، ظلم، او جبر څخه بې غمه دي؟ د هغوی عفت په ځای دی!؟ او ناموس یې خوندي دی؟ ایا هغوی ته ښه ژوند په برخه دی؟ یوه گوله ډوډۍ په اسانتیا سره موندلای شي؟ ددې ټولو پوښتنو ځواب (نه) دی.

ښځه هم انسان ده له انساني شرافت او کرامت څخه برخمنه ده ډیر ستونځمن کارونه کولای شي نارینه د هغي کار ته خورا زیاته اړتیا لري خو په دې شرط چې ښځه په هغه کار کې بند پاتي شي کوم چې قدرت ورته ټاکلی دی او بل دا چې د نارینه مشرتابه ته غاړه کښیږدي له نارینو سره د برابرۍ هڅي د ښځي له پاره بې گټي دي پوهاند پروډون په خپل کتاب (ابتکار النظام) کې دی خبري ته نغوته کړې او داسي لیکلي دي.

خرنگه چې ښځي ته یواځي معنوي ښیگڼي وربښل شوي دي لدې کبله هغه یوه گران بیه ملغلره ده او له نارینه څخه مخکې ده د ښځي ددې ښیگڼو انکشاف هلته کیدای شي چې د نارینه مشرتابه ته غاړه کښیږدي ښځه باید ځان ښه وساتي ددې له پاره لازمه ده چې د نارینه تابع سي او حکومت یې ومني. او د ښځي له نارینه سره ځان برابرول خورا بد کار دی او ددې حیثیت ته صدمه رسوي او د زوجیت ښائسته مزې پرې کوي مینه او الفت له منځه وړي او نتیجه یې دا چې ټولنه د هلاکت توري کندي ته ټیل وهی د فرید وجدي کتاب المراه المسلمه

## الرجال قوامون علی النساء

دا د فطرت چیغه ده، خورا پخه او د کاڼي کرښه ده د نړۍ له اول تاریخ نه تر ننه پوري ددې پر خلاف څوك ندی بریالی شوی انساني ځواك له دې عاجزه دي او هیڅ بدلون نشي پکي را وستلی او که د بدلون هڅه یې وکړي نو یواځي خپل سر له کاڼي سره وهی او بس او پر خلاف یې گام پورته کول داسي ستونځي او ربړي را منځ ته کوي چې حل کول یې ناشوني دي.

ښځه به د نارینه تابع داري کوي او مجبوره ده چې تابع داري یې وکړي په باندنیو کارونو کې ښځه نشي کولای چې له نارینه سره برابره شي ځکه په دې خطر ناکه مقابله کې کروړلي شرایط په کار دي بدني ځواك ستونځي او زیاتي ستوماني گالل گڼ شمیر دردونه او کړاوونه زغمل دا هغه څه دي چې د ښځي په کچکول کې نشته. د نړۍ د تاریخ پاڼي واړوي داسي زمانه به نشي پیدا چې ښځه دي د نارینه له تابعدارۍ وتلي وي په نړۍ باندي تل نارینه حکومت کړی دی. هیڅکله هم ښځو په نارینه غلبه نده موندلې دا ددې خبري پوخ ثبوت دی چې د ازل لیکونکي د ښځي په تندي دا اطاعت توري کښلي دي خو نني خیالي فلسفه غواړي چې د فطرت دا پاخه قوانین بدل کاندي کمزوري په زورورو غالب شي او محکوم واکمن شي خو د قدرت قوانین ډیر پاخه دي او په عقل پیاوړي دي انساني ځواك د حال په ژبه وائی چې د خیالي فلسفي ټول کوښښونه نشي کولای څو د ناکامي داغ له خپل سپیره تندي لیري کړي دا کوښښونه د قدرت پر خلاف ناکام دي او تل به ناکام وي څوك چې د فطرت له قوانینو سره ډغره وهی باید پوهه شي چې هغوی د بشریت څو لړ ځواکه وگړي دي چې له قدرت سره په جگړه دي دا وگړی نشي کولای د فطرت پاخه قوانین مات کړي او یا لږ تر لږه کم زره بدلون پکی را ولي قدرت د نړۍ چلن په فطري توگه پر مخ بیول غواړي ددې کم بختو [illegible] خو هستاتو بندگانو غوښتنو ته نه گوري د قدرت د قوانینو ماهر پوهاند [illegible] کومت په خپل کتاب (النظام السیاسي) کې لیکي:

موږ پرته له دې چې د ښځي د ناممکنې ازادي د هڅو [illegible] تکلیف وکړو د ریښتوني فطري نظام د قدر پیژندلو له پاره په موږ [illegible] ددې خبري احساس کول ضروري دی چې که هر وخت ښځو ته هغه مادي [illegible] مسئول [illegible] چې د هغو له پاره د ښځو غمخواران او وکیلان منډي ترړي وهی نو یواځي د هغوی اخلاقي حالت ته صدمه نه رسیږي بلکه د ټولني د قیام او برقرارۍ نظم له پاره چې ښځي ته فطرت کومه فریضه ټاکلي هغه هم له منځه ځي.

ځکه په داسي حالت کې چې ښځه هره ورځ له کومو ربړو او ستونځو سره مخامخ کیږي نو دا له خپلې عاجزۍ څخه په تنگیږي او د تمدن او ټولنې [illegible] خورا مهم کارونه نیمگړي پاتي کیږي و [illegible] به یې دا وي چې د ټولني خوشالي به په ویرونو او دردونو بدلیږي د ژوند [illegible] خواږه به ترخه شي د نر او ښځي د مینې او محبت سپیڅلي چینه به خړه پړه شي او د ټولني ددې درو جنسونو خوږ ژوند به یو مخ پای ته ورسیږي

پاته لري

# Acupuncture
# د ستني طب

ژباړونکی
ډاکتر جاوید (وردګ)

د ستني طب یا اکوپنچر نن په لویدیزه نړۍ کې د نوي متبادل طب ( Alternative Medicine ) په توګه کیږي په رښتني توګه د ستني طب او له هغه سره مل سوځول یا داغول ( Moxibution ) څه د پاسه پنځه زره کاله راهیسي د درملنې په توګه په تیره بیا په چین ( China ) کې کارول کیږي. په لنډه دا چې اکوپنچر په بدن کې د ډیرو نریو (نازکو) ستنو او سیمونو ټومبل او چخول دي او کیدای شي، چې ځیني وختونه ورسره بریښنایی تخنیك هم یو ځای کړای شي او په دې توګه د بدن پر فزیولوژیکي دندو اغیزه اچوي. اکوپنچر کیدای شي د ځینو ځانګړیو بوټیو د سوځولو او بیا د هغوی له تودوخې سره په ګډه وکارول شي، چې ( Maxibution ) ورته ویل کیږي.

په همدې توګه پرته له ستني لګولو د ګڼښښلو (فشار راوستلو، چاپي کولو یا د مساژ درملنه) ( Acupressure ) هم کیدای شي اغیزمن او ګټور وي. دا کوپنچر لومړنی لیکنه د لرغوني ژیړ امپراتور د داخله طب ( Huang Di Nei Jing ) ده، چې ۴۷۰۰ کاله کیږي ویل کیږي چې دا نړۍ تر ټولو پخوانی طبي درسي کتاب دی. دا کتاب د چین د طب پلار ښاغلی ( Shen Nung ) کښلي چې لاپخواني اصول پکې ځای شوي دي. ( Shen Nung ) هلته د ویني د بهیر او تاو (جریان)، نبض او د زړه په باب فرضیې او اټکلونه کښلي دي، چې په ۴۰۰۰ کاله وړاندې یورپ کې په دې هکله څه اټکل هم نه ؤشوي. لکه دا کوپنچر بنستیزه اټکل (Shen Nung) خپل لیدك (نظر) داسي وړاندې کړی، چې په بدن کې یوه انرژي او توان شته او پکې تاویږي. دغه توان او یا وس د Qi (جي) په نامه یادیږي. Qi د ژوندانه هغو طبیعي دندو څخه جوړ شوی، چې اروایی (روحي)، احساساتي ذهني او فزیکي اړخونه لري. د انسان روغتیا، په بدن کې د Qi په تاوښت او د Yin او Yang په انرژیو پوري تړلي ده. (Yin او Yang ته به وروسته راو ګرځو) کله چې چې د Qi خوځښت او تاوښت (جریان) بې وسه یا نیمګړی، بې انډوله (بې موازني) او یا پرې شي، Yin او Yang هم انډول او توازن له لاسه ورکوي او ناروغي منځ ته راځي. Qi په بدن کې په ځانګړو لیکو ( Meridians ) پل وهي او تاویږي. دغه لیکي او لاري د بدن په دواړو خواوو کې غبرګي دي. په بدن کې ۱۴ اصلي او لویې لیکي او چینلونه دي، چې ښکته او پورته ګرځي. له دغو کرښو او لیکونه وتلي ۱۲ د غړو لیکې هم د بدن په دواړو نیمو خواوو کې شته (په یاد ولرئ چې دوي هم غبرګي دي) دوې لیکي هم شته چې غبرګی نه دی. له دغو ټولو لیکو او لارونه بیا دا کوپنچر د ټکیو ګراف جوړیږي، دا کوپنچر ټکي هغو ځانګړو برخو او ځایونو ته وایې چې پر یادو شوو لیکو او چینلونو سر بیره د پوستکي (سطحي) ته راځي. بیا کولای شو چې پرې لاسبرشو او د ستني لګول، داغول ( Moxibution ) او یا ګڼښکښل ( Acupressure ) وکاروو. په ټول بدن کې دا کوپنچر څه د پاسه ۳۶۰ ټکي لرو. د ټکیو په منځ کې اړیکې موږ ته دا راکوي، چې Qi

تاویري او بهیر لري او په همدې توګه د Yin او Yang ترمنځ توازن شته. په ثابته توګه انرژي په همدغو لیکو کې بڼکته پورته ځي او بهیر لري او کله چې دغه لیکې نیمګړې، بندې او یا ډیرې پرانیستل شي او یا هم ددوی ترمنځ لږ توازن وران شي و Yin او Yang له اندول ځخه لویږي، د ناروغی اعمال او غیر کون همدا وي اکوپنچر د بیرته اندول او توازن د ترلاسه کولو له پاره درملنه ده.

د ین Yin او یانګ Yang د اکوپنچر د درملني په اړه په چینائي طب کې د بدن د جوړښت په اټکل یوه مهمه او ځانګړي فرضیه بنسټیزه ګڼل کیږي.

هغسې چې مخکې Qi انرژي وګڼل شوه چې په بدن کې بهیر (جریان) لري، د یادوني وړ ده، چې Qi په طبیعت کې هم خپور دی. Qi له دوو برخو نه جوړ شوی (Yin او Yang)

ین او یانګ (Yin او Yang) دوي مخالفي قوي دي چې په ګډه سره کار کوي. ددوی په توازن او اندول کې د بدلېدلو او یا اوښتلو په پایله کې د خلکو په بدن کې ناروغي منځ ته راځي. Yin د بنځینه ځانګړتیاوو په مانا غیر فعاله، تیاره، سړه، لمده، چې د منځ په لوري خوځیږي او له Yang ځخه نیمګړي ده. Yang د نارینه ځانګړتیاوو په مانا، رڼ چابک (فعال)، تود، وچ چې کېنې اړخ ته خوځیږي او له Yin ځخه نیمګړي او بې برخې دی. یو یې هم بشپړ نه دی، نه Yin او نه Yang ځرګنده او بنه بېلګه سړی (نارینه) دی، چې د خپلې مور (Yin) او پلار (Yang) ګډون او یوځای کېدنه ده او دواړي ځانګړتیاوي لري. دا یوه عمومي نښه ده چې د Yin او Yang جوت خوځښتونه او فعالیتونه ځرګندوي.

په یاد ولرئ چې (Yin او Yang) د یو بل نیم دی او په همدې توګه د Yang نښې په Yin کې دې که تاسې پر تیره فلسفه چې Taoist نومیږي باور لرئ او که نه، خو دا سپینه او ځرګنده ده چې اکوپنچر کار کوي.

د اکوپنچر ډاکټران کولای شي د اکوپنچر نهه ډوله ستني وکاروي، خو ګڼ شمېر نن یوازې شپږ ډوله ستني کاروي او تري ګټه اخلي، چې په اوږدوالي، پلنوالي او د څوکو په تېره والي کې سره، توپیر لري، په دې وختونو کې زیاتره ډسپاسبل ستني چې یوازې یو وار کارول کیږي دود دي، چې د ناروغی د ځرنګوالي او هم د سپارښتنو په بنه یو ځل کارول کیږي. د ستني وهلو په اړه څو ډیري ځرګندي او دقیقې تګ لاري شته چې ستني لګوونکي ډاکټر د هغوی په بنه ستني ټومبي. د ټکیو په سیمه کې ستن کیدای شي هر چیري له ۱۵ نه تر ۹۰ درجو پوري د ناروغی او درملني په بنه ولګول شي. په ګڼ شمیر پیښو کې د ناروغی په وسیله د ستني ټومبلو احساسول ضروري هدف وي.

لاندي کړنلاري او تخنیکونه سملاسي د ستني له ننه ایستلو ځخه وروسته پلي کیږي: پورته کول (پرمخ بیول) ننه ایستل، تاوول او یا دواړه یې ایستل "کشول" لړزول چې دغه لړزښت د ستني په مرسته استول کیږي.

ریږدول او لړزول بله ځانګړي تګ لاره ده، یو ځل بیا هم د یادوني وړ ده چې دغه تګ لاري او لاري چاري د رنځ او ناروغی په بنه تاکل کیږي. د اکوپنچر د درملني په اړه څو کړنلاري شته چې ځیني دلته هم د یادوني وړ دي.

لومړی: Electro Acupucture ده چې د برېښنا د ډيري وړي قوي د پارولو لپاره په ګډه کارول کیږي

په ټولنیزه توګه دغه کړنلاره د درد درملني او د خوږیدو او درد د مخنیوي له پاره پکاریږي.

د کارولو له پاره د برېښنا غښتلتیا بویه ډیره لږه یاني څو میکرو امپیره او چابکتیا (فریکونسي) یې کیدای شي. له پنځو نه تر دوه زره هیرتزه (5-2000 Hz) وي، لوړې فریکونسي د عملیات له پاره په تیره بیا د ګیډي او ټیټي فریکونسي په ټولنیزه (عمومي) توګه د درد د مخنیوي او درملني (تداوي) له پاره کارول کیږي لومړنی بریالی عملیات چې د Electro Acupuncture) په مرسته تر سره شول د ستوني عملیات (Tonsilectomy) وو. چې پر ۱۹۵۸ کال په چین کې تر سره شول نن دغه کړندود په چین کې د عملیاتو د درد د کمولو او مخنیوي له پاره عمومي او منلي ګڼل کیږي.

د اکوپنچر د پارولو له پاره د لیزر (Laser Acupuncture) او غږ (Sono Acupancture) ځخه هم کار اخیستل کیږي. په امریکې کې د غوږ اکوپنکچر (Auriculotherapy Or Ear Acupancture) پراخوالی موندلی دی.

دغه اکوپنکچر د لاندي فرضیې په بنه چې په غوږ کې د وینو او اعصابو شتمني او پراخي اړیکي شته او د بدن له ډیرو غړو سره اړیکې لري، ولاړه ده، ځکه د ډیرو غړو د ناروغیو د اکوپنکچر ټکي په غوږو کې دي. د ځینو درملو په کارولو سره په ګډه د غوږ اکوپنکچر د الکولیزم او چاغښت په درملنه کې ګټور ثابت شوي. د اکوپنکچر بله برخه د ستنو د تودوخي او حرارت "Moxibution" سره په ګډه کارول دي چې د زړی (ساه لنډی) برانشیت، فلج یا شلتوب او د بندونو د پړسوب په درملنه کې اغیزمن دي. د اکوپنکچر یوه بله ډیره ځانګړي برخه (Acupressure

پاته په ۵۰ مخ کې

انجنیرشاه محمود (بری)



# په ژوندانه کښې د میوو غذائي ارزښت

پاك خدای (ج) چې په دنیا کښې پر خپل مخلوق باندې د کومو نعمتونو احسان کړی دی هغه له حکمت څخه خالی نه وي موږ غواړو دلته د هغو انعامونو څخه یوازې میوې او د هغه غذائي ارزښت د طب پر بنیاد باندې په لنډه توگه و څیړو . ځکه د انسانانو په خوړو کې تر پنځوس ډوله زیات مالیکولونه ضروري دي معلومه ده چې نباتاتو دخپلو میوو په وسیله دژوندیو موجوداتو ترمنځ د غذائي ځنځیر په تنظیمولو کې ډیر زیات خدمتونه تر سره کړي دي چې غذائي ارزښت یې په دې ډول سره دی . د گلانو هغه برخه چې معمولا په هغه کې دانې موجودې دي میوه ورته وائي . د میوو او سبو انساج لکه د نورو ژوندیو موجوداتو په شان ډیر کیمیاوي مرکبات لري چې نوموړي انساج د جوړښت او کیمیاوي ترکیب له مخې یوله بله سره توپیر کوي . د میوو خواړه ایز (غذائي) مواد له اوبو انرژي ، فایبر ، نشاستي ، شکري ، شحمونو ، پروتین ، ویتامینونو ، عضوي تیزابو ، معدني موادو او نورو څخه عبارت دي .

د نوموړو موادو ارزښت په ژوند کښې دا دی .

۱ - میوې ډول ډول ویتامینونه لري چې د ژوند او د ژوندیو حجرو لپاره ضروري وي

۲ - میوې زیات معدني مواد لکه کلسیم ، فاسفورس ، اوسپنه او ایودین لري .

۳ - قبضیت چې د مزمنو ناروغیو سبب گرځي د میوو خوړلو په پواسطه یې مخنیوي کیږي

۴ - میوې انرژي تولیدوي اوله هغه څخه د انساجو په ترمیمولو او داخلي غړیو د وظیفو په تنظیمولو کې گټه اخلي .

۵ - په هضم او نورو غذائي موادو په جذب کې اساني پیښوي .

د میوو خوړلو مهم گروپونه او ځیني کیمیاوي مرکبات پدې ډول سره دي .

لومړی اوبه

اوبه د انسان د ټول عضویت د حجراتو او مایعاتو اساسي برخه تشکیلوي چې د یوه شخص مالیکول په څیر یې خواص د ژوند لپاره مرکزي حیثیت لري . ضروري گڼل کیږي د عضویت د تودوخې درجه تنظیموي د بدن په یو کیمیاوي تعاملونو کې برخه اخلي او د زیاتو مالیکولو او ایونو لپاره د محلول په توگه عمل کوي په میوو کې اوبه په زیاته پیمانه سره پیدا کیږي چې په ځینو وختو کې په سلو کې تر ۸۵ برخو پورې نشتوالی لري ، د میوو په انساجو کې باید همیشه اوبه وجود ولري که د ودې په وخت کې له زیاتې تندې سره مخامخ شي نو مړاوي کیږي ، او د خوړلو نورماله وظیفې سرته رسولی نه شي . ځکه نو تازه میوې د خوړلو په وخت کې باید اوبه د لاسه ورنه کړي .

چې پر غذائي کیفیت یې ناوړه اغیزه کوي او به لرونکي میوې له ختکو ، لیمو ، الوبالو ، کیلو ، زردالو ، سیبو ، توتانو او نورو څخه عبارت دي .

## دوهم پگمنتونه

په میوو کې دا رنگه زرو ته پگمنټ وائي د میوو رنگ د پگمنتونو په موجودیت پوري اړه لري او پر (۳) مهمو گروپونو ویشل کیږي .

۱الف - کلورفیلونه - د نباتي حجرو په کلور پلاست کې وجود لري درلونکي د شنه رنگ دي چې د نباتي ترکیب (غدا جوړولو) په عملیه کې ډیر مهم او یوازې په نباتاتو کې شتوالی لري .

هر څومره چې میوې و پخوالي ته نژدې کیږي په هماغه اندازه د کلو رفیل اندازه یې کمه او شین رنگ یې تغیر کوي . ځیړنو څرگنده کړیده چې د کلورو فیل په تغیر خوړلو کې د تودوخې شرایط ټاکوونکي دي

ب - کیروتینو په پگمنتونه . نوموړي پگمنتونه ژړ ، نارنجي ، او سره رنگونه لري په میوو کې ځکه زیاته خواړه ایز

ارزښت لري چې درلوونکي د کيروتين وي کيروتين هغه رنګه مواد دي چې په وجود کې په ويتـامين ډي بدليږي چې په زردالـو ، چکوتري ، شفتالو کې وجود لري

ج- د فلاونا يا پګمنتونه : د لومړی خل لپـاره پـه ليمـو کې د فـلاوه نوئيدونـو موجوديت وښودلی شو

چې پـه انسـانانو کې د وينـي سسـتم درګونو د ديوالـه پـه کلکوالـي او کپـي ليويـد پـه نفـوذ بـاندي اغـيزه لـري دا مـواد مخکـښي د ويتـامين بـي پـه نـوم سره ياديدل اهميت يې په طب کښي خورا ښکاره دی

په ليمـو کـښي تـر ټـولـو زيـات فـلاده نوئيدونـه وجـود لـري لکـه هسـپريدين- نـارنجنين -ليمونيـن او نور انتر سيـانين چې يو ډول فلاوه نايد دي په ميوو کې پيدا کيږي چې و ميوو ته سور ، ابي او ګلابي رنګونه ور بخښي

## دريم کاربو هايدريد ( شکري ) او عقوي تيزابونه

شکري ډيري مهمي دي چې د ګلو کـوز شکل يې د جذب وړتيا لري پـه منظور د ګلايکوجـن پـه ډول ، يـا ګلکتـوز د شـيدو پـه قنـد ( لکتـوز ) بدليـږي پـه نباتـاتو کـې د ضيـائی ترکيـب پواسـطه باندي لومړی ساده شکري ياني ګلوکوز جوړيږي لـه هغـه وروسـته بيـا لـه سـاده شـکرو څخـه ډای او پـالي سـکرايدونه جوړيږي ترڅو د نبـات جوړښت منځتـه راوړي شـکري د حجـرو پـه خـوږو بـي ( شيره ) کې ځای لري

په ميوو کې د کاربوهايدريتو پيمانه له ۲ برخـو ( کـوچنی ليمـو ) ۱۵ برخـي د مالتو ځيني ډولونه او ۳۰ برخي په خرما کې ليدل کيږي

دکـاربو هـايدريتو ترکيـب او پيمانـه د ميـوو د پخوالـي پـه مختلفـو مرحلـو کـې توپير لري د مثال په توګه پخي ميوي د تـازه وزن پـه اسـاس پـه سـلو کـې تـر ۲۳ برخو پوري هم شکري لري ځيني نيلـه ايز ( ريښه اي ) ميوي لکه جغنـدر ، ګنی او نـور پـه سـلو کـې د ۸ څخـه تـر ۱۸ برخـو کاربوهيادريتونه لـري ځيني پخـي ميـوي لکـه کيلـي ، شـفتالو ، او نـور زيـات سکروز لري

د ميوو خوند او مزه په هغوی کـښي د عضـوي تـيزابو او شـکري پـه موجوديـت پوري اړه لري

## څلورم شحميات ( غوړي )

شحمونه د کيمياوي عناصرو څخه جوړ او په عضويت کې د انرژي يوه غوره منبع ده غذائی شحمونه د حجري ساختماني اجزا او عمـده برخـه تشـکيولي ، عصبـي نسـج پـوښي او د ځينـو اعضـاو د تقويـي سـبب کرځي پرته له زيتون او کاډو څخه د نورو ميوو شحميات لکه د پروتيـو پـه شـان پـه سايتو پلازم کې پيدا کيږي

شحميـات او شحميات ډولـه مرکبات د ميوو په محافظوي انساجو کې وجود لري ستروسر ( مالته ، ليمو ، نارنج ، سنتره او نور ) د ميوو مخصوص بوی په هغو غوړو پوري اړه لري چې په پوستکي او شيره کې موجود وي

شحميات په زياته اندازه کوچني ليمو ، توتـانو ، انـارو شـفتالو او نـورو ميـوو کې نسته

## پنځم پروتين ( نايتروجني مرکبونه )

د پروتينو ساختماني واحد لـه امينو اسيدو څخه عبارت دی چې د کوچنيو ماليکولو څخه جوړ د حجراتو پـه نشـونما ، عصبـي هدايت کې مهمه ونډه لـري پروتينونـه د انرژي ښه منـابع دي چې د پروتو پلازم په تشـکيل کـې اساسـي برخـه لـري ټول انزايمونـه پروتينونـه دي چـې د هغـوی پـه نشتوالي کې ژوند ناممکن دی په عضويت کـې د تعـاملونو او ميتـابوليزم د تنظيـم کوونکي په توګه عمل کوي

د ځينو ميـوو پـه زونو ( زړي ) او شـيره کې يـې د واحد وزن انـدازه د۵_۱۰ برخـو پوري رسـيږي مغزبـاب ( بـادام جنغـوزي پسته ) او نور په ستر ه پيمانه پروتين لري په ستروسر ( مالته ، چکوتره ، ليمو ، نارنج سنتره ) او نورو کې نايتروجني مرکبات په پروتينـو او امينواسـيدو او امـ[illegible] حـه عبـارت دی چې پروتيـن يې په زياته [illegible] په پوستکي ، تخـم او پـردو کـې [illegible] اسـيدونه چـې پـه شـربت کـې [illegible] او نايتروجني داسي منابع لري چې [illegible] په اساني کته ځني اخلي همدا رنګه کيلي ، ګيـلاس ، انګور ، زر دالـو ، توت [illegible] او نـــوري ميـــوي هـــم د پرو[illegible] منبع ده

## شپږم ويتامينونه

پـه غـذا کـې کـښي د و[illegible] نسـبي کموالی ( کمښت ) يا نشتوالی په عضويت کې ناروغي پيښوي

په اوبـو کـې منحـل ويتامينونه بي ګروپ ويتامينونه او ويتـامين سي ، د تغذيي لپاره ضرور دي کوم چې په انزايمونو تعاملونه کې د کوفکتور په توګه عمل کوي ځرنګه چې په زيات مقدار باندي له ادرارسره طرح کيږي له دې کبله بايد پـه منظمـه توګه د غـذا لـه لاري واخستل شي

په شحم کې منحل ويتامينونه ( ويتامين اې ، ويتـامين ډي ، ويتـامين کـا ) پـه ترتيـب سـره د ليـدو د کلسـيم او فاسـفيټ پـه ميتـابوليزم او وينـي پـه لخته کيـدو کـې وظيفـي لـري د سـترو کورنـی د ويتـامينو مختلف ډولونه لري چې يوه برخه يې په عضوي فعال ډول موجود وي او د انسان په بدن کې پـه فعـال شکل بدليـږي د سترو سو د شربت اغيزه د ويتامين سي د کموالي ناروغي د مخنيـوي لپـاره د پخـوا راهيسـي ځرګنده ده بايد يادونه وشي چې په سيبو زردالو ، ګيلاسو ، انګورو ، انارو ، شفتالو ، کيلو ، مالتو او نورو ميوو کې مختلف ويتامينونه وجود لري پای

سليمان خيل

# بې شعوره کينه

د اوښ په باب يو مشهوره خبره ده چې کينه او کرکه يې يوه ورځ نه يوه ورځ انتقام او غچ ضرور اخلي.

څوك چې زيات کينه پر ور وي نو زموږ خلك اوس هم ورته وائي سړيه څه د اوښ غوندي کينه لري اوښ په کلونو کلونو خپله کرکه او نفرت نه هيروي او هر وخت چې د کيني د غچ زمينه ورته برابره شي صرفه نه کوي د امريکا يانو کرکه هم د اوښ د کرکي او کيني په څير ده چې د شعور او سليم عقل له دايري څخه بيخي وتلي ده کله کله خو دوی دومره يوه وړوکي مسله د خپل ضد او حسد مسله وګرزوي چې د کيکي له وزر څخه د هماليا غر جوړ کړي په دې لار کې د يهودو اخباري او برقي ميډيا هم داسي څغاسته او منډه ورسره کوي چې نه د بشر د حقوقو ثابت نوزمونه رعايتوي او نه د نورو نړيوالو قوانينو په کيسه کې دي بس چې څه يې خوښه وي هغه کوي د ليبيا د عربي هيواد پر دو تنو اتباعو باندي امريکايانو د پان ايم بې لاکر په طياره کې د بم د چاودني تور ولګاوه دغه بې ځايه بې اثباته او بې ښه او بده تور يې د نړۍ په خبري شبکو مجلو، تلويزيونو او اخبارونو راډيو يي خبري بولټونو کې دومره تبليغ کړ تا به ويل چې که ريښتيا خبره پر دنيا شته نو همدا يوه خبره ده چې د ليبيا دو تنو عربانو په هوا کې طياره چاودلي ده.

خو د ليبيا مشر معمر القذافي خپلي دواړي ښني د پرتوګ په يوه پايڅه کې دنن کړي. او ورته وي ويل چې خدای يو مالګي تروي که بې بې ثبوته يو مدعی هم ورته وسپارم امريکا د ملګرو ملتونو له پلاټ فورم څخه د بنديزونو د قرار دادونو له کڅوړي څخه څو قرار دادونه را وايستل پر ليبيا يې دهوايي کرښو الوتني بندي کړي د ليبيا پر کمپنيو باندي يې د نړيوال تجارت دروازي وتړلي حتی د درملونو او دواګانو لاره يې هم بنده کړه. د ليبيا د مشر کوريې بمبارد کړ چې د قذافي يو ماشوم زوی هم پکښې شهيد سو چې خپل ټول وس يې تمام کړ نو بيا يې د سعودي د باچا او افريقا د ملي کانګريس د مشر نيلسن منډيلا په وساطت غوښتنه وکړه چې ليبيا دي خپل دوه تنه اتبع و هالينډ ته وسپاري او با الاخره د بې پړي او د عادلانه محکمي ضمانت يې هم ورکړ خو په دې پراخه نړۍ کې به څوك وي چې د امريکايانو پر ضمانت به يې يقين او باور کيږي. په ۱۹۹۱ ميلادي کال کې امريکايانو د سوډان يوه مسلمان رهبر ته پيشنهاد وکړ چې تاسي اسامه له خپلي خاوري وباسی موږ ژمنه کوو چې پر سوډان باندي به نړيوال بنديزونه له مينځه يوسو! کله چې اسامه د سوډان له خاوري ووت نه بنديزونه ختم شول او نه سوډان د دوی په خپل زعم د ورانکارو هيوادونو له کتاره ووت آ د پښتو متل دی چې وائی: پکه دادي لابله سپکه نه وړي نه راوړي په سپينه ورځ يې د سوډان د ښار مرکز خرتوم د کروز توغنديو په اور کې نينه کړ چې د يوې لويې فارميسي شبکي د دوا جوړولو ټولي ځانګي يې پکښې لولپه کړي دا خو لا پريږده امريکايانو د ډالرو په زور د سوډان عيسويان وهڅول چې له سوډان څخه جلا سي او ځانته د يوه عيسائي مملکت بنياد کښيږدي د سوډان د تجزيي دغه بدنامه ناکامه شرميدلي او شيطاني توطيه لااوس هم د امريکا يي ډالرو په لګښت او مصرف روانه ده. له سوډان څخه د اسامه په وتلو امريکايان نه تنها له خپلي ژمني څخه پر شا سول بلکه پرسوډان يې تجاوز هم وکړ او همدا اوس هم سوډانيان د امريکايي توطيو ښکار دي. او د سوډان په جنوب کې عيسويان چې باغيان او طاغيان دي ځانته ښله پاچاهی غواړي چې خرڅه يې ارباب کلنټن او سي ای ای ورکوي.

همدا امريکايان دي چې په خپله خاوره کې د دريمي نړۍ د قاتلانو، غلو او لوټمارانو موجوديت ته د سياسي پنا هندګي پرتوګ ور اغوندي خو په افغانستان کې يې بيا داسامه د شته والي له مسلي څخه دومره لويه لانجه جوړه کړي ده ته به وايی چې په دې څلور کنجه نړۍ کې ګه کړکيچ او بحرانونو همدا کړکيچ دی حال دا چې د افغانستان اسلامي امارت د نړيوالو اصولو او پرنسيبونو په جدي رعايت سره څو ځله غوږ وړانديز کړی دی چې موږ د اسلامي شريعت په رڼا کې هيڅ ډول قاتل ته د رعايت ورکولو په حق کې نه يو که څوك ريښتيا انکار نه منونکي اسناد شواهد او نور معتبره لاسوندونه لري نو زموږ قضايي محاکمو ته خصوصا ستري محکمي ته دې وسپاري.

د افغانستان اسلامي امارت به د مجرم د عادلانه محاکمي لپاره خپل ټول قوت، پر ستيژ او و سايل په کار واچوي خو په مقابل کې د زور، غرور او تکبر پر غونډۍ ولاړ امريکايان هرڅه په لغته ووهي او هغه د چا خبره ده چې يا جوال څيروم يا د ادې په

باقي په ۵۱ مخ کې

د عصمت قانع زباړه

# څو ورځې په افغانستان کې

**لاندې سفرنامه زموږ په ګاونډي هیواد پاکستان پورې مربوط ده د څو تنو خیرمنو او پاك زړو ورونو د هغه اوږده سفر رویداد دی چې دوی په افغانستان کې بشپړ کړی دی.**

**په افغانستان کې یې څه لیدلي دي؟ زموږ د هیواد د بې مثله امن او د امارت د مختلفو مسولینو اخلاقو څومره تر اغیزې لاندې نیولي دي؟**

**راځئ چې ددوی احساسات انګیرني او برداشتونه په ګډه سره ولولو.**

د اسلام د بشپړ پرتم په نوم په لاهور کې یوه موسسه ده چې په ټول پاکستان کې د خیر او ښېګڼې کارونه کوي.

دې موسسې د نوي نسل د سالمې اسلامي روزنې لپاره دا رقم سکول سیستم په نامه یوه لویه اداره جوړه کړې ده او د بې سوادی د له مینځه وړلو هدف یې هم په مخه پسې اخیستی دی د اقرا پروژې په نوم یې د بې وسو شاګردانو د تعلیم پروګرام هم پیل کړی دی ددغې پروګرام د تطبیق په لومړیو پړاوونو کې ۲۰ مدرسې تر اوسه جوړې شوې دي. او په نظر کې لري چې شمیر یې تر ۵۰ زرو مدرسو پورې ورسوي البته دا شمیر یوازې د پاکستان لپاره ندی د افغانستان په جهاد کې هم دغې موسسې ښه رول تر سره کړ.

ده میلونونو روپو پروژې یې د روغتیا او اسلامي کلتور د خپریدو په څانګه کې اجرا او عملي کړې دي

په تېرو ورځو کې د افغانستان د اسلامي امارت د سرحداتو د وزیر لخوا د اسلام د بشپړ پرتم د موسسې و مسولینو ته یوه بلنه راغله په دغه بلنه کې لاندې کسان لیکل سوي وو

شیخ محمد نعیم، میا محمد مصدق، محمد اسلم ترین، شیخ اصف احمد، مختارسلیم، محمد شریف مغل، ډاکتر عبدالروف خان، ډاکتر عبدالله محسن، ډاکتر خواجه احمد جاوید، خواجه محبوب الهی، خواجه کاشف الهي، طاهر خاکوانی ډاکتر خواجه صادق حسین، ډاکتر ممتاز قلي خان، ډاکتر احمد سعید، ډاکتر محمد احسان، پروفیسر عثمان غني خان، طارق الله صوفي، نصرالله ترین، احمد سرور، خو شیخ اصف احمد، محمد شریف مغل، خواجه محبوب الهی، طاهر کواني، پروفیسر عثمان غني خان، طارق الله صوفي، او نصرالله ترین د خپلو ناوزګارتیا و په وجه زموږ له سفر څخه پاتي شول

د پاتي کسانو پر ځای مو په مشوره څینې نور کسان د سفر انډیوالی ته انتخاب کړل

ښاغلی محمد اسلم خان ابرار احمد، او شیخ فهیم مودنا بللیو میلمنو په توګه له خان سره بوتلل

موږ شیخ محمد نعیم صاحب د ټول سفر مشر وټاکه او د هغه تر لارښوونې لاندې مو غونډه وکړه

غونډې پریکړه وکړه چې د سفر اخراجات به د افغانستان د اسلامي امارت پر حکومت باندې نه اچوو

او لګښتونه به ټول په خپله جیبه څخه پریکوو موږ د افغانستان ته سفر څخه د ښې نتیجې د لاس ته راوړو لپاره څینې هدفونه هم وټاکل

دا خبره مو سره خوښه کړه چې په افغانستان کې به له مهمو حکومتي او امارتي مقاماتو سره تفصیلي غونډې کوو او په افغانستان کې به د صنایعو، روغتیا او ښوونې روزنې په ساحو کې له افغان حکومت سره د مرستې پر امکاناتو باندې په تفصیل سره خبرې کوو

زموږ ډله د کار په ساحه کې پر درو ګروپونو باندې وویشل شوه

د لومړي ګروپ مشر مو شیخ محمد نعیم وو دې ګروپ دنده درلوده چې د صنعت او ښوونې او روزنې په ساحه کې به له افغان حکومت سره د مرستې لارې چارې لټوي

دوهم ګروپ د روغتیا په ساحه کې وو چې په دې ساحه کې مسلکي ډاکترانو ته وظیفه ورکړای شوه

دریم ګروپ د فرهنګي امورو په هکله وو چې مشرتوب یې محترم احمد سرور پر-

غاړه درلوده .

ډاکتر محمد احسان صاحب زموږ د سفر د چارو مسول وو هغه مو له خواجه احمد جاوید صاحب سره یو ځای د اګست په ۲۹ مه افغانستان ته ولیږه ترڅو زموږ د سفر لپاره مخکي له مخکي ښه زمینه برابره شي ډاکتر صاحب په دې سفر کې د داروګانو یو څه مقدار هم له ځان سره یوړ چې د افغانستان د اسلامي امارت روغتیایي مقاماتو ته یې ورکړي .

موږ پاتي کسان د اګست په ډیرشم تاریخ د پاکستان د هوائي کرښي په یوه مسافر وړونکي الوتکه کې پېښور ته ولاړو . د هیئت د ټولو غړو ټکټونه د یوې الوتکي نه وو شیخ محمد نعیم صاحب محترم ابرار صمد او ښاغلی محمد نعیم صاحب په بله الوتکه کې را پسي راغلل .

د پېښور په هوائي ډګر کې د یوې افغاني موسسي چلونکي محترم محمد خالد رشید موږ ته ښه راغلاست وویل د خالد رشید پلار د افغانستان د پخواني پارلمان غړی وو ددوی کورنۍ په افغانستان کې ښه درنه کورنۍ ده . او ښه اثر او رسوخ لري په جلال اباد کې د څو مارکیټونو ملکیت هم ددوی د کورنۍ دی .

په خپله خالد رشید غواړي چې په افغانستان کې په عصري لوازمو سنبال مکتوبونه او مدرسي جوړي کړي . د تعلیم او تربیي ښه مسلکي مهارت پوهه او استعداد لري . شپه مو د پېښور په ګرین هوټل کې تېره کړه .

## د تورخم پر لور

په ۳۱ اګست موږ له پېښور څخه تورخم ته روان شوو پر لاره یوې سرحدي پوستې را وګرزولو او پوښتني یې شروع کړي نیم ساعت ورسره وځنډېدو .

د پستي مشر وسله وال کسان را سره ولېږل ترڅو پر لاره په تکلیف نه شو نه پوهیدلو چې ځای پر ځای د وسله والو دولتي قواو د پرموجودیت برسیره دغه لویه لاره لاولي دومره له خطرونو ډکه ده تر تورخم مخکي د خیبر دروازه راځي او بیا د خیبر تاریخي دره .

د خیبر په هکله په تاریخ فرشته کې لیکي چې د لاهور یوه راجه افغانانو او خلجیانو ته څو کلي په دې شرط ور وبخښل چې سرحد به له مسلمانانو څخه ساتي افغانانو د پېښور پر نږدې غرونو یو دیوال ووهلو چې دغه دیوال په خیبر سره مشهور شو

باید څرګنده کړم چې په تاریخ فرشته کې یې افغانان قبطي فرعونیان یاد کړي دي . تاریخ لیکي چې پر فرعون باندي د حضرت موسی علیه سلام د برلاسي باوجود ځیني فرعونیانو حضرت موسی "ع" ونه مانه او د فرعون وفاداري ته ژمن پاتي شول فرعون ته وفاداري دغو قبایلو ته ګرانه تمامه شوه له وطنه را ورک شول او د هندوستان په شمال کې یې واړول چې بیا یې د خپلي هستوګني سیمه د سلیمان د غره په نامه مشهوره کړه .

## د ویزي په دفتر کې

دتورخم له سرحدي پټي څخه چې څوک اوړي نو پر پاسپورټ یې د EXIT انګریزي کلمه ټاپه کیږي د استخباراتو د دفتر ساتمن رحیم ګل ته چې پته ولګیده موږ د افغانستان د اسلامي امارت د وزیرانو شورا رسما غوښتي یو نو تحقیقات یې پیل کړل .

ده فکر کاوه چې دا یو مهم هیئت دی باید چې د پاکستان حکومت ته یې بشپړ معلومات ثبت شي .

کله چې مطمئن شو نو موږ یې د خاصو خلګو سالون ته بوتلو ښه عزت یې راکړ د فانتا او کوک بوتلونه یې راته وړاندي کړل موږ چې د پېښور ګرمی وهلي وو ټول مو په یوه اینده و څښل .

ساتمن د کوټي پر دیوالونو د را ځوړندو عکسونو په باره کې هم معلومات راکړل یو تصویر د پاکستان د لومړنی موسس مشر د هغه سفر تصویر وو چې د تورخم پر ځنځیر یې یوه افغان سرباز ته لاس ورکړی وو او د روغبړ په حال کې وو .

ساتمن راته وویل کله چې محمد علي جناح افغان سرحدي سرتیري ته وویل څومره تنخوا اخلي نو پوهیږې چې افغان سرتیري څه ځواب ورکړ ؟

*ځواب یې دا وو چې . موږ خپله خاوره ساتو، خاوره موږ ده او موږ افغانان خپله مور په مزدوري نه ساتو .*

یو بل عکس بیا د جنرال ضیاء الحق او امریکا یې ولس مشر جورج بش وو چې دوی تورخم ته د راتګ په وخت کې جوړه اخیستي وو

په ۱۹۸۹ میلادي کال کې چې پر جلال اباد باندي سخته جګړه وه موږ یوې ډلي پاکستانیانو غوښتل چې د تورخم پر ځنځیر باندي ور واوړو خو د پاکستاني امنیتي ساتونکو په لاس ونیول شو .

وروسته بیا د هغه پیژند پاڼو په مرسته خلاص شولو چې زموږ له جیبه راووتلي .

## د ډیورنډ کرښه

کله چې موږ تر ډیورنډ کرښي ور واوښتلو وموليدل چې افغاني ترافیک د پاکستان پرخلاف د سړک پر بل اړخ باندي روان وو د سړک دواړو غاړو ته د لرګو او خټو دکانونه له بهرنیو سامانونو څخه ډک وو په دغو دکانونو کې افغاني وچه میوه هم خرڅیږي چې دپاکستان په نسبت خورا-

ارزانه ده موږ چې تر سرحد يوځه ورتير شو د افغانستان د پاسپورټ په يوه دفتر کې مو پر پاسپورټونو د ENTRY ټاپه ووهل شوه د سفر له پيل څخه مخکې به د ډيورنډ د کرښې په هکله معلومات درکړم

مولانا محمود علي تصوري په خپل کتاب (مشاهدات کابل و ياغستان) کې ليکي

د انګريزانو او افغانانو تر مينځ ددښمنۍ توره کټوه تيره شوي وه هر ورځ به سره په جنجال کې وو

بالاخره عبدالرحمن خان د افغانستان واکمن شو انګريزانو له امير عبدالرحمن خان سره يو تړون لاس ليك کړ چې د هغه له مخې امير متعهد شو ترڅو پر انګريزي قواو باندې د افغاني قبايلو له حملو څخه مخنيوى وکړي

په تړون کې فرنګيانو د متقابل لوري په توګه ژمنه وکړه چې امير ته به ددى کار په بدل کې په کال کې پوره ۱۲ لکه نغدي چغدي هندوستانى کلداري ورکوي

امير زيات کړاو وګاله ترڅو پر برطانوي هند باندې د افغاني قبايلو له بريدونو او ناتارونو څخه مخنيوي وکړي خو بيا به هم د ناتارونو په وجه به سرحدي جنجالونه را مينځ ته کيدل ددغو سرحدي لانجو د ختمولو لپاره انګريزي شيطانانو د ډيورنډ توطيه تر اجرا کيدو لاندې ونيوله د انګريزانو پدې باره کې خپل يو کارپوه سرهنري مارټر ډيورنډ توظيف کړ چې د برطانوي امپراطورى او افغانستان سرحد تعين کړي

د ډيورنډ تر قيادت لاندې هيئت د افغانستان او برطانوي هند سرحدونه په شرقي جنوبي او جنوب غربي سيمو کې په نښه کړل چې اوس دغې سرحدي کرښې ته د ډيورنډ کرښه وائي

دغه سرحدي کرښه د کنړ له غرونو را شروع کيږي او د خيبر د غرونو په غيږ کې له علي مسجد او ډکي څخه جنوبي لور ته غزيږي چې ډيره اوږده سرحدي کرښه ده د ډيورنډ له تړون څخه وروسته د امير تنخواه زياته شوه او پوره اتلس لکو کلدارو ته لوړه شوه

په دغه تړون کې د افغاني جنګياليو قبايلو سيمه چې ياغستان بلل کيده د برطانوي امپراطورى په اغيزه کې پاتي شوه چې اوس يې هم غير علاقه بولي

پدې کار سره انګريزانو دا هم غوښتل چې افغان حکومت له خپلو سرحدونو ليري وساتي يوه پراخه علاقه يې د فاصل سرحد په توګه تعين کړه په دغه علاقه کې اوس د پاکستان ملکي تشکيلات د ايجنسيانو په نامه چليږي چې پاکستان مطبوعات يې فاټا بولي

د ايجنسيانو خلك په افغانستان او پاکستان کې بې پاسپورټه ګرزي او را ګرزي دوى په دواړو هيوادونو کې ملکيت درلوداى شي

د ډيورنډ تړون د معتبرو اسنادو له مخې ۹۹ کالو لپاره اعبار درلود او ۱۹۸۳ ميلادي کال کې لاس ليك شوى وو

## د تورخم جلال اباد لويه لاره

د تورخم جلال اباد لويه لاره په پيل کې د ۱۵ څخه تر ۲۰ کيلو متره پوري بيخي خرابه ده کنډو کپر پرته ده خو له شلو کيلو متره وروسته د ګوزاري وړ سړك دى چې تر جلال اباد پوري سمه دمه پخه کرښه ده او ترافيك بې تکليفه تګ را تګ پرې کولاى شي د سړك دواړو غاړو ته د افغانانو د شل کلن تاريخي تاورين ژوندي تصويرونه تر سترګو کيږي کورنه وران دى فابريکي او عام المنفعه تاسيسات ټول کنډر کنډر پراته دي پردى برسيره د وچکالۍ طبعي فاجعي هم خپله جوله را څرګنده کړي ده

د جلال اباد شاه و خوا سيمي بيا د درونټې د کانال په وسيله تر اوبو لاندې دي چې خورا شتني منطقي دي او عصري فارمونه لري د جلال اباد ښار ښکلي ښار دى عصري واټونه پراخي لاري او مهذب کلتور لري

په بازارونو کې يې ښه ګڼه ګونه دى

## د خالد رشيد په ميلمستون کې

په جلال اباد کې محترم خالد رشيد موږ خپلې خانګړي حجري ته بوتلو د حجره نه ده بلکه يو ښه پراخ ميلمستون دى چې د رنګا رنګ ګلانو بوټي او د ... سي په انګړ کې کرلي دي او ښې ... شوي هم دي له حويلۍ سره جوخت د صابون جوړولو فابريکه ده چې ... ويرانه او ويجاړه پرته ده

د غرمې ډوډى که څه هم لږ څه وځنډيده خو خورا ښه ډوډى وه موږ په ژوند کې داسې ډوډى نه وه خوړلي افغانان که څه هم غريب خلك دي خو د ژوند په سليقه او ذوق تر موږ ښه پوهيږي خالد رشيد صاحب را ته وويل چې پر لاره موكوم زراعتي فارمونه وليدل هغه د زيتونو فارمونه وو

ددغو فارمونو شمير تر څلورو ته اوړي خو څه د پاسه پر ۲۸۰۰ هکتاره مځکه باندې اباد دى

د ونو شمير يې اوو لکو ته رسيږي او پخوا يې زموږ هيواد ته د ميلونونو ډالرو په ارزښت بهرني پانګه راوړله

حکومت له زيتونو څخه د غوړو ايستلو او اچار جوړولو لپاره ۳ فابريکي جوړي کړي وي چې له ۳ څخه يې دوي فابريکي کنډواله شوي دي

او ديوي فابريکي د ترميم او بيرته جوړولو امکانات يې زيات دي

د کورنۍ بدنامي غدی په جريان کې د فارمونو د اوبه خور او کاناليزاسيون سيستم ويجاړ شوي دي او وتو ته پر وخت باندې کيمياوي سره نه رسيږي له همدې امله اوس حاصل نه ورکوي خو تقريبا د فارمونو بيرته احيا ډېره په اسانۍ سره کيدای شي

د ونو او زيتوني بوټو حاصل خيزه کول څه د پاسه ديرش ميلونه پاکستانۍ کلداري لګښت غواړي

که څوک وغواړي چې په دې هکله پانګه ولګوي نو په يو کال کې بيرته هم خپله پانګه تر لاسه کولای شي او هم ګټه پکښې کوي ځکه چې زيتون له لږ څه زيار څخه وروسته حاصل ورکوي او زموږ زيتون خو په دې ګرده نړۍ کې ساري نه لري

خالد رشيد صاحب له افغانانو سره د امريکايانو د بې موجبه دښمنۍ په هکله هم راته وړغيد

ده وويل د اريانا افغان هوائي کرښې د مسافر وړونکو ترانسپورتي طيارو د ترميم او سرويس د کارونو په باب زموږ د هوا نوردي وزارت د چين له اولسي جمهوريت سره يو تړون لاس ليک کړ خو کله چې امريکايانو خبر شول نود چين ولسي جمهوريت يې تر فشار لاندې ونيو چې بالاخره چينايانو د قرار داد له عملي کيدو څخه پر شا شول اوس زموږ الوتکې د نه سرويس اونه ترميم په وجه له مينځه ځي او د الوتنې وړتيا بايلي خالد رشيد د ښوونې او روزنې په هکله هم د خپل هيواد د اوسنې حالت په هکله راته وړغيد

ده وويل چې موږ اوس د ښوونې او روزنې په ساحه کې تقريبا ۸۵۰۰۰ پنځه اتيا زره تعليمي پرسونل لرو چې هر يو ته يې به مياشت کې پنځه لکه افغانۍ حقوق ورکول کيږي دا بيخي کم معاش دی معلمان د معلمي تر څنګ د خپلو کورنيو د لګښت لپاره په نورو کارونو پسې ګرزي چې په ارامو اعصابو د شاګردانو تربيې ته خلاص نه دي فقط دوه دري ساعته درسي پروګرام عملي کوي

نو له همدې امله زموږ د ښوونې او روزنې حالت د رحم وړ دی په ښوونځيو کې له زده کونکو سره نه پوره کتابونه شته او نه د لوست او زده کړې لپاره لازمه قرطاسيه لري

د سواد فيصدي په ټول هيواد کې تقريبا تر لسو فيصدو پورې ور رسيږي د سواد حالت تقريبا ۹۰ کاله پخوا هم همداسې وو په جلال اباد کې د چرګ غوښه يو کيلو څه د پاسه سل او يا هم نوي پاکستانۍ کلداري ده ځکه چې چرګان له پاکستان څخه راځي او دوی لا تر اوسه د چرګانو وړيا فارمونه نه لري خو د پسونو او غوايي غوښه بيا تر پاکستان ارزانه وي د پسه غوښه يو کيلو ګرام تقريبا په ۳۵ - ۴۰ روپو پورې قيمت لري شيدې يو کيلو ګرام په ۹ روپۍ او اوړه کيلو ګرام په ۱۲ روپۍ وو، ښه وريجې په ۳۳ او ډوډۍ په ۳ روپۍ کيدله چې د پاکستان په نسبتا زياته ارزانې وه لطف الله د ننګرهار د تعميراتو رئيس وو چې زموږ په ملاقات را ګډ شو ښه د ذوق سړی وو

د مازديګر لمونځ مو په ده پسې وکړ خو په لمانځه کې خورا تيز وو لطف الله يوه مدرسه هم لري چې دوه سوه شاګردان لوست پکښې کوي زموږ ځينې کسانو د خان عبدالغفار خان د قبر د ليدو غوښتنه کوله چې مشرانو په کراهت سره دا غوښتنه رد کړه

## د کابل پر لور

خالد رشيد صاحب د کابل په لور د روانيدو لپاره د ترانسپورت په کار پسې بوي را ونغاړلي

له جلال اباد څخه تر کابل پورې دغه لويه لاره چې خورا غوره تجارتي او ترانزيتي اهميت لري کنډ او کپر پرته ده دغه لويه لاره د کابل له سيند سره متوازي غځيږي

ترين صاحب وويل چې پر دغه لاره به د سفر پيمايش په کيلو متر نه کوو بلکه ددې لپاره ښه مقياس وخت دی يعنې يو ساعت منزل دوه ساعته منزل دري ساعته منزل او

د سړک د خرابوالي په وجه دوړو زموږ حالت بيخي خراب کړی وو دغه لويه لاره تقريبا دري ساعته مزل لري خو چې سړک خراب وو موږ په شپږ ساعته کې طی کړه

## د کابل په ښار کې

د شپې يوولس بجې وې چې کابل ته ورسيدو نو په کابل کې د شپې پر ګرزيدو را ګرزيدو بنديز لګيدلی وو

موټران مو د سپين غر هوټل په مخ کې پارک کړل دغه هوټل د کابل له ښو هوټلونو څخه دی

له سپين غر هوټل څخه موږ ته خبر را غی چې افغانی کور بانه مو د اوږده انتظار له تيريدو وروسته تللي دي

موږ ته وويل شول چې تاسې سمدستي د قوماندان خليل کور ته ولاړ شي. له ډوډۍ خوړلو وروسته د شپې تيريدو ته بيرته دلته راشي بايد څرګنده کړم چې قوماندان خليل د سرحداتو د وزير حاجي ابرهيم کشر ورور دی

موږ کرايې موټر رخصت کړه او په دولتي موټر کې د خليل د کور په لور روان شوو. د خليل کور د وزير اکبرخان په ماډرنه سيمه کې دی پاته لري

# لنډکی یونلیک

ملا سلیمان اغا «بهیر»

مطمئن صاحب
د اطلا عاتو او
کلتور مربوط د ځیني
نشراتي کارونو لپاره راته
د کراچي د تللو وویل
ما چې تر اوسه دکراچي
ښار نه وو لیدلی نو ټوله
شپه مې د یوه نابلده ښار د او
اوږدې لارې د پریکولو مخې ته په وینښ
تیره کړه سهار د سپیدو خواته مې لږ
سترګې سره ورغلې وې خو د ملا اذان مې شوګیری سترګې د خوب په نړۍ کې پرې نښودې زه هم لمانځه ته راپورته شوم دا ورځ مې تر لسو بجو د سفر د اړتیاو په پوره کولو تیره کړه د لسو بجوپه شاو خوا کې مې د کراچي د سترې سفر پر لوري ګام پورته کړ سفر مې له یو داسې هیواده وه چې ټول خلك د اسلامي نظام تر سیوري لاندې په ډاډمنه فضا کې تر ورځ په شپه ژوند خوښوی دلته چې ټول خلك د شرعی امر په منلو سره د نړۍ له نورو آزادو هیوادونو له خلکو سره ډیر توپیر لري دلته د ټولو خلکو پر مخ مبارګي ږیرې دي د لوی خدای (ج) ټول قانون یې دزړه له کومې منلی دی. خو زه و یو داسې هیواد ته په سفر وم چې هلته هر سړی د خپل سر دی ډیرو راته وویل چې ګوره کوښښ خو خپل ځای دی څوك دي له جامي اوپګړۍ نه ترهیږي خو کراچي ته که ورسیدي نو هلته به دي دا پګړۍ او واسکټ له ځانه جلا کوي که چیرې پدې افغاني لباس کې د پولیسو په سترګه شوې بیا به نو پولیسو ته پیسې له ځانه ور جوړه وي هر چا یوه خاطره د کراچي د سفر راته ویله خو ټولې مې په دماغ کې د ډبرې لیك کړې د کندهار له ښار په یوه وړه ټکسي کې تر بولدکه د وران هیواد پر کنډ کپر سړك باندې چې ډیرې دوړې وې په درې ساعته کې ورسیدم د پاکستان یو مشهور عالم مولانازرولی خان صاحب و افغانستان ته د راتلو په وخت کې یو ملګری د لارې د دوړو او خرابتیا ویلي وه هغه په خواب کې ورته ویلي وه دلته که سړکونه خراب دي لارې یې دوړې لري خو لوی خدای د اسلامي امارت تر سیوري لاندې د یو داسې نظام نعمت وربخښلی چې هغه هر مسلمان ته روحی سکون او ارامي ور په برخه کوي چې په هغه سره جسماني ټولې ستونځې له مینځه ځي ماته هم د شهید ملا بسم الله (سحر) دا شعر بس و چې وائی:

دا ستا په مینه مړینه ویاړ دی زما
زما غریب او پر ما ګران وطنه
ستا جوړیدو کې ژوند ویجاړ دی زما
شم دي قربان افغانستان وطنه
ستا په غم تن ښخ د شهیدو په مدفن شوزما
خو ته مې هم د غلیم ګور کړې

د چمن له ښاره د کوږك د غره پر کږلیچونو باندې ښه په مزه را تیر شو د کوټې په ښار کې یې ښه په عزت کښته کړو د کراچي اډې ته مې ځان څلورو بجو ته ورساوی هلته مې د کوچ ټکیټ واخیست یو وطندار چې د لیرې یې زه وپیژندم د سړك له ها بلې غاړې یې په غټو ګامونو خان را واړوه او زما خواته را را نژدې سو له سترې مسې او پیژندګلوي وروسته یې راته وویل راځه! له موږ سره په یو بس کې ولاړ شه ما د بل بس ټکټ ورته وویل ده راته وویل که دي ټکیټ نه وای کړی نو ښه به وای موږ هلته یو څه بلد یو خو خیر یو څو خبرې راسره ومنه هغه د چې دا پګړۍ دي په یو بکس کې د حت واسکټ دي هم یو ځای وساته هس سه چې د افغانی خیال یې د ربندی سی پولیس به تکلیف درکړي او سل شرح سهار وختي د کراچي ښار سه سه حی نوته له اډې مه ښوره چې ورځ سه حسی بیا دي نو حرکت وکړه بس سه هم سه ټکیسي کې نه ځي ځکه ټیکسی د بل له پولیسو سره لاس یو کړی و موسس د یو شیپر په واسطه پوهه کړی سه یو حدی خبر چې د واسکټ له غوږي یه دی د مناخت کاره دي کاوه (چای پسی دیو) په نعرو دي د تالي واخواته څومره کش کړي؟ وطندار چې یو څه ولاړی بیرته په منډه راغلي ویل یې ګوره دي په جیب کې یو سته هغه دي هم یو ځای خوندي کړه کوم جیب وهونکی یې درڅخه یو نسي ستا به د افغانستان فکر وي دلته به دي مال ګوري

زه هم ژر د اډې یوي ګوښې ته شوم هلته مې د لارې د ضرورت څرڅه را جلا کړه او نور مې د واسکټ په یو استر کې واچولي د نورو خلکو په څیر ناکاره کښینستم د وطندار ټولې مې ومنلي خو د پګړۍ غورځول راته یو څه ګران او د شرم خبره ښکاریده توکل مې وکړه کوچ هم روان شو خلکو د سفر د خیر دعا کوله خو ما د سپیدو د پولیسو له جنجاله دامان دعا وکړه زما له ښه بخته کوچ پر لاره خراب سو چې د سهار پر ۹ بجې یې د کراچي و ښار ته داخل کړم زه ژر سیولی

خپریږي د امارت په اړه یې نشرات ښه دي خو کله د یو کشر ملګري جزبات د امارت د پالیسي په نامه تیر کړي کله بیا خپل نظریات پر امارت وراړه وي یا داسي عکسونه خپاره کړي چې د هغه د خپرولو ضرورت هم نه وي خو بیا هم ښه دي وروسته د ملا عنایت الله کاکا زاده په شناخت د دار الافتا و کوتې ته ولاړو په دارالافتا کې د ننه یو ځني ور خوان چې په خپلو چارو کې راته ډېر هځاند او ستړی ښکاریدی د ستړي مسي دوه توري یې په پښتو (ته شه یې جوړ یې) په ستړي مسي کې راسره خلاص کړل بیا نو کاکازاده صاحب ور وپیژندم هغه مې پدې خاطر چې له کندهار ورغلی وم ډېر احترام وکړ کاکازاده صاحب چې پر خپل قلم ښه لاس بری او پدوی کې هم د ښه رسوخ څښتن و هغه ځنور خوان را وپیژندی چې د مفتي رشید احمد صاحب شاګرد دی مفتي عبدالرحیم صاحب نومیږي او په جهادي خدماتو کې ښه تجربه لري ماته یې هم جهادي همت د منلو وړ و مفتي عبدالرحیم صاحب چې دوه ورونه یې د خدای د رضا لپاره په جهاد کې شهیدان شوي دي د ډېر مجاهدي کورنۍ ځخه دی نومووړی د دارالافتا په جهادي نشراتو او نورو کارونو کې یې پوره سلاحیت درلود ما هم د خپلو نشراتي کارونو په اړه خبره ورسره وکړه چې ده یې د سرته رسولو په اړه اطمینان راکړ د هغې وروسته زه او کشر کاکازاده ددوی میلمستون ته راغلو ورور! دا کبر باچا دربار وو له سم سړي یې لټ جوړاوی ځوك په یوه انګیا کې بې قمیصه پراته دي چا بیا ځان د شړشمو په تیلو وهلی د بادپکي و ساړه باد ته شاړي واړي غورځیدلي دي ځوك د کشمیر په اړه منظومي ترانې وائي چا بیا د اسلامي امارت په ستاینه غاړي کولي بس د مجاهدینو په نوم خوره او ځښه نور نو حساب مه منه موږ هم د پښو او د لاسو په ښورولو بړستني سره واړولي او لږ

ځای ځو د ناستي لپاره جوړ کړ د باد پکي و هواته مو ځان ایله کړ د باندي مې په ماته او ګوډه اوردو یو بړغ ترغوږ شو کله چې اطاق ته راغلی نو کجل افغان دی له ستړي مشي وروسته ملا عنایت الله کاکازاده را وپیژندی چې دا مولوی عبدالسمیع زموږ د اطلاعاتو او کلتور نماننده دی دلته د وزارت لخوا را لیږل سوی دی ددي لپاره چې دلته په ضرب مومن کې کله ناکله داسي څه تیریږي چې خپله مېنه د پختیا پر ځای ځني وسوځي د مولوی عبدالسمیع صاحب د چای پخولو لپاره ولاړ سو که څه هم هلته د شنو چایو ځښل له افغانانو پرته رواج نه وو خو د میلمستون میلمانه چې پر ځای ورسیدلي وه اوس ټولو عادت ورسره نیولی وه د چایو له راوړلو سره ټول په خپلو ځایونو کې سره وغځیدل هر طرف ته یې د سترګو تر کونجانو کتل کله چې چای را ورسیدي نو مولوی صاحب هم ور سره یوه و ځلور پیالي یې راوړی چې هغه ایله په موږ ورسیدي دوی هم له بړستنو په ډېر ستمي را وغورځیدل (مولانا صاحب کپ هے) ددوی لپاره بس هم دا د جواب طریقه وه چې (کف بورچي خانه مې هے) دومره نو دوی نه وه چې اشپزخاني ته دي دوه ګامه ور واخلي بیرته وخپلو بړستنو ته پرشا شول له ځایه به یې را بړغ کړل مولانا صاحب له افغانستانه راغلی یې ما ورته وویل هو بس یوه دا دعا یې له وسه ښه کیده چې خدای (ج) دي اسلامي امارت تل لري ما هم ورسره امین کړل مازدیګر و چې کشر کاکازاده کورته ولاړی او زه په میلمستون کې پاته شوم مابنام چې د مولوی عبدالسمیع صاحب یو ګوښي اطاق و هلته د خوب لپاره ولاړو یو بل مجاهد چې د کشمیر له جهاده راغلی وه هغه هم را سره ویده سو کله چې نیمه شپه شوه د چا په ژړا او سلګیو را ویښ شو که ګورم هغه کشمیری مجاهد لاسونه

لپه کړي سر یې کښته خوړند کړي په دعا بوخت دی کله یې چې زه ویښ ولیدم نو یې را ته وویل پورته شه تاته ځنګه خوب درځي امیرالمومنین مو د کفارو له لاسه ځومره په خور دی په ځومره مشکلاتو کې را ګیر دی ګوندي خدای (ج) یې زموږ په دعا د یهودو او نورو کفارو له شره خلاص کړي سهار مې نو مولوی عبدالسمیع صاحب ته قیصه وکړه هغه وویل وروره دلته هره ورځ دغه دعاګاني دي اسلامي امارت چې د نړۍ د مظلومانو د امید لوري ګرزیدلی دی د همدا عاجزو دا دعاګاني دي چې خدای پاك مو کارونه پر مخ بیا یي سهار له چایو وروسته زړه نا زړه وم سرېه خدای مکړه یو ځای د پولیسو له جنجاله سره مخامخ نشي بیا مې توکل کړ و قونسل ګري ته روان شوم په عمومي سړك مې یوښاري بس ته لاس ورکړ په ډېر ټیل ماټیل کې مې د بس مابین ته ځان ورساوی هلته په ولاړه ودریدم دلته چې مې هم په جیب اندیښنه وه او هلته بې پردي حال نو مې یوه سترګه پر دین بله پر دنیا کړه یو سړی چې ږیره او بریت یې چټ خریلي دي خوله یې د پان په ژوولو تکه سره ده ډېر ډېر یې راته کتل کله چې یې د ځنګ چوکۍ خلاصه شوه او ورسره ناست ملګري ولاړ شو زه یې ترلمن کش کړم په کې کښینولم تر ډېره یې ځان دوري دوري کړ چې ګوندي دی به یو څه ووایی خو ما هیڅ جانداري ونکړه وروسته یې په اوردو راته وویل له افغانستانه راغلی یې ماهم په خپله ماته او ګوډه اوردو چې ایله نیم ساعت مې مقاومت پرې کولای شوای ورته وویل هو له افغانستانه راغلی یم د نورو سواریانو چې په ما کې یې سترګي ښخي وي په ولاړو یې لاسونه د بس په اوسپنه کلك کړي و وویل طالب یې هغو ته مې هم د هو ځواب ورکړ هرچا د هیواد د روان بحران په اړه معلومات را ځخه غوښتل جنګ ځنګه دی اقتصاد

د سترګو تر کونجانو ګورم خوتر کوزیدو پوري راته خیر شو له هغه وروسته زه په چټکی سره دیو ځوان په لارښوونه و افغان قونسل ګري ته د رسیدو په نیت دښاري بس په انتظار ودریدم کله چي را ورسیدی زه هم په منډه کي ور پورته شوم څه باندي لس بجي یي افغان قونسل ګري ته ورسولم له ځو پوښتنو وروسته مي قونسل ګري هم پیدا کړه .

د مولوی رحمت الله کاکازاده په شناخت چي په کراچۍ کي د اسلامي امارت لوی قونسل دی په دروازه کي مي د ولاړو پولیسو نه ځان تیر کړ هلته مي لږ شیبه په انتظار خانه کي له تندي خولي وڅنډلي وروسته یي خپل مقام ته ور وبوللم کله چي یي ولیدم خدای شته ډیر را باندي خوشحاله شو چي زه یي له میلمه پالني ډیر متاثره شوم د څاښت د ناشتي بند و بست یي هم راته وکړه چي د سفر ستوماني مي ورباندي و ختله وروسته یي کشر ورور ملا عنایت الله کاکا زاده چي پخوا په کابل کي د کابل ټایمز انګریزي اخبار مسول و اوس د ضرب مومن د اردو انګریزي عربي اونیزي همکار دی هم را ورسیدی هغه هم په میلمه پالنه کي تر مشر ورور کم نه و زما په راتلو یي ډیره خوښي څرګنده کړه .

غرمه زما د کار په له معلومولو وروسته یي و دار الافتا ته په یو موټر کي د کراچي د ګڼ بازار په سړکونو کي تیر کړم تر خپله وسه یي ډیر ځایونه را وښودل ما هم پدي ګڼ ښار کي ډیر د عبرت سحني او حیرانونکي ځایونه ولیدل .

چي زه یي هم پدا ولي . هغه څنګه ، دا څومره باندي ستړی شوم .

او دی مي هم په ، نه یم خبر ، څه ووایم ، نه پوهیږم ، تر پوزي راوستي بیا یي کور ودان دا یي نه ویل چي بس نوري پوښتني مه کوه .

وروسته یي و څنګ ته د ګرزیدو اشاره ورکړه په یوه کوڅه را وګرزیدو یو جماعت مخي ته یي موټر ودراوی که ګورم د جماعت د دروازي دوه متره د سړک خواته یي کلکي پنجري جوړي کړي دي د دروازي پر سر یي یو برج چي ډیر سوري یي هم لرل د مورچي غوندي جوړ کړی او یو مسلح پهره دار پکي ناست دی د سړک یوه او بله خوا ځاري حیران پاتي شوم موږ ته به استادانو وویل چي په اخیره زمانه کي به یاجوجي ما جوجي ټول انسانان وخوري د ریابونه به وچ کړي بوازي هغه څوك به ورڅخه خلاص شي چي مسجد نه یي فناد ور وړه نړیوال کفار خو د اسلام په دښمنۍ کي تر یا جوجو ماجوجو هم بي رحمه دي چي په مسجدونو کي هم څوك ورځني خوندي ندي

د جماعت د دریدو پر وخت به یي هم شکمن کسان له سرده تر پښو تلاشي کول او یو مسلح نفر د امام په خوا کي ولاړ و خو څه به یي کوي خپله مسلماني ورته اوروه په ډیرو مدرسو کي اوهر مسجد کي دا حال و ډیر مخور علما کرام د مدرسو استادان یي په همدي تور چي ګواه کي مسلمانانو ته د جهاد دعوت ورکوي په بي رحمه توګه شهیدان کړي پدي لنډو شپو کي یي په کراچي کي مولانا محمد یوسف الدهانوي چي ډیر مشهور عالم و. تیرکال یي مولانا حبیب الله مختار چي هم لوی عالم و شهید کړهم دا راز یي په اسلام اباد کي مفتي عبدالله صاحب او داسي نورعلما کرام په شهادت رسولي دي د دغه دارالا فتا بنسټ ایښودونکی چي مشهور لوی عالم مفتي رشید احمد صاحب دی چي ګڼ شمیر مریدان او شاګردان لري ډیر مجاهدین یي د کشمیر او نوري نړۍ په جهاد بوخت دي د نوموړي ډیر اثار ، رسالي او کتابونه چي د خلکو د ضرورت وړ مسایل پکي لیکل شوي دي هم چاپ شوي دي او مولانا محمد مسعود اظهر چي تیر کال د هند د الوتکي د تیښتي په وخت کي چي په کندهار کي را کښته شوه له شپږو کالو بند و روسته د هغي الوتکي او مسافرینو په بدل کي ازاد سو د هغي الوتکي په تبادله کي را خلاص شو د مفتي رشید احمد صاحب مرید او شاګرد دی او د جیش محمد(ص) په نامه د ګوند امیر هم دی چي د کشمیر په جهاد کي مستقیمه ونډه لري په نوموړي خانقاه کي چي ټول ذکر او فکر د جهاد او د مسلمانانو د وحدت او جهادی مبارزي یو مرکز و چي پدي لاره کي یي د مظلومو اولسونو د را ویښولو لپاره د توري له جهاد سره یو ځای د قلم او ژبي په جهاد کي هم بي ساري ونډه لری او د نړۍ د بي وسو مسلمانو لپاره یي د چندي یو صندق د الرشید ټرسټ په نامه هم درلود چي د نړۍ له بډایه مسلمانانو څخه چندي را ټولوي تیر کال چي لوګر او میدان وردګ سختي زلزلي ټکني کړل او اوس بیا چي ټول هیواد رواني وچکالی وځپلو نو "الرشید ټرسټ" په مناسب وخت کي د یادولو او ستایلو وړ کومکونه وکړل د کابل او کندهار پر لویه لار یي یو شمیر مسجدونه جوړ او یو شمیر د تړپلان لاندي د زیات شمیر کورنیو سره دوامداره ماهانه مرستي کوی . وخت پر وخت دارو درمل راوړی . همدا راز یي په اونۍ کي یو اخبار هم (ضرب مومن ) په نامه په اردو ژبه چي ۱۵۰۰۰۰ یونیم لك یي د چاپ اندازه وه چاپیږي . همدا راز یو بل انګریزي اخبار هم لری چي تیراژ یي د دري زرو په شا و خوا کي وه یوه جیش مجله یي درلوده چي د خپل ګوند په اړه یي نشرات کول ضرب مومن چي ډیره برخه یي د افغانستان په اړه د امارتي چارواکو مرکي د باختر اژانس راپورونه او نوري هغه ګټمني خبري یا مضامین وی دوی راټول کړي او یا یي لیکلي وي خیني نور یي د کشمیر او فلسطین او چیچنیا په اړه راپورنه مطالب خپره وي چي یوه رنګینه د عکسو پانه هم ورسره چاپیږي په پاکستان او نورو هیوادونو کي په لوړه کچه

لیکوال: طالب العلم کرامت الله جهانګیري

# اسلامي نړۍ د تودې او سړې جګړې پر مهال

دحق او باطل جګړه د بشر د پیدایښت څخه پیل او زموږ په عصر کښي ډیري خطرناکي مرحلې ته رسیدلې ده نن ورځ د نړۍ په ګوټ ګوټ کي مسلمانان له دښمنانو سره که ملحدین دي او که یهود، هندوان، او که منحرف شوي عیسایان او یا هم د خدای نه بې خبره باغي ډلې په توده او سړه جګړه اخته دي نه یواځې د مسلمانانو هجرتونه، شهادتونه، زندانونو ته اچونه، د کور، وطن او ټاټوبي ورانه ویجاړه او د شتمنیو لوټ کول یې په شدت سره روان دي.

بلکه د تهذیب، مقدساتو او د اسلامي هویت د ورکولو پلانونه یې هم ترتیب او د ګډو هلو ځلو په شکل د عمل ډګر ته وړاندي کیږي. چې له ټولو نه ډیر خطرناک دي په کمونستي هیوادونو کښي حتی اسلامي نوم ایښودل جرم بلل کیږي.

په هندکښي پخواني جامع جوماتونه په درمسالونو او کلیساګانو بدلیږي او په فلیپین کشمیر، فلسطین کاسوو او حبشه کښي بیا په کنډوالو بدلیږي. د خدای (ج) مقدس کور او د مسلمانانو دوهمه قبله (بیت المقدس) چې یهود او اسرائیل یې خپل پایتخت ټاکي دا د ذلت وضعه پرمسلمانانو هغه وخت را خوره شوه چې اسلامي خلافت په ترکیه کي د دښمنانو په شومو لاسونو له منځه ولاړ تر دي حده چې هلته اوس د اسلام خبره او د الله اکبر چیغه جرم ګڼل کیږي.

خو د نیکه مرغه چې پدغه ورستیو کلونو کې د طالبانو اسلامي تحریک د ... افغانستان د زړه نه را وټوکید او منځ ته را غی. د اسلامي نړۍ ملتونه بیدار شوي او د دښمن سره د مبارزې لپاره تیار شوي او را ولاړ شویدي. چې یوه بیلګه یې هم د چیچنیا مجاهدین او داسي نور دي او که خدای (ج) کول ژر ده چې بریالیتوب به یې په برخه شي.

خو دښمنانو د تودې جګړې په څیر د مکر او فریب نوري حربې (سړه جګړه) هم په پټه او ښکاره توګه روانه کیږیده او غواړي چې د مسلمانانو نوي او ځوان نسل بې لارې کړي او د خپل دین په هکله یې په شك او تردید کې واچوي. لیدل کیږي چې غربي لیکوالان د خباثت او مکر له مخې د اسلامي تحقیقاتو او لیکونو په ترڅ کښي هڅه کوي چې اسلامي تمدن دعربي تمدن په نامه یاد کړي او اسلامي تمدن ته عربي جامه ور واغوندي ځکه د اسلام کلمه ددوی په ژبه درنده او ثقیله ده. او پدې توګه غواړي چې اسلام په عربو کښي منحصر کړي پداسي حال کښي چې اسلام له دغه واړه او تنګ چوکاټ څخه ډیر لوی او زښت پراخ دی.

او همدا رنګه غواړي د اسلامي ټولنو ترمنځ هغه نژادي او ژبني کرغېړن تعصبونه بېرته را ژوندي کړي. کوم چې اسلام بیخي وژلي او له منځه وړیدي د اسلامي نړۍ رهبرانو، او مذهبي مشرانو او روحاني او فکري علماء ته پکاردي چې دوی د اسلام ستر وارثان دي د اردوغیرتمنو ځوانانو ته چې د دیني مقدساتو ساتونکي او د هیواد ددین او تاریخ حامیان دي. ټوله اسلامي نړۍ باید سره متحده شي اود کفري نړۍ په مقابل کښي ودریږي اود دښمنانو شومو پلانونه ور شنډ کړي لکه د تودې جګړې په څیر د سړې جګړې د سنګرونو فتح کولو په خاطر خپله وظیفه وګڼي او په هره لاره مبارزه ور سره وکړي. خدای (ج) دي اسلامي نړۍ ته یووالی او اتفاق ور په برخه کړي امین. پای



ملا محمد همنوا

# کبیره ګناهونه

۱ - قتل قصدا ، ۲ - زنا ، ۳ لواطت ، ۴ - رشوت ، ۵ غیبت ، ۶ - ناحقه شاهدي ، ۷ - غلا کول ، ۸ - شراب خوړل ، ۹ - ناحقه د زنا نسبت کول چاته ، ۱۰ - ناحقه قسم کول ، ۱۱ - د بل مال غصبول ، ۱۲ - سود کول ، ۱۳ - د یتیم مال خوړل ، ۱۳ - بل ازارول په هر قسم چې وي ، ۱۴ - وصله رحمي قطع کول ، ۱۵ - پرسیدنا رسول الله علیه وسلم دروغ ویل ، ۱۶ - روژه ماتول ، ۱۷ - د جهاد څخه تیښته کول ، ۱۸ - خیانت کول په تول او ترازو امانت کې ، ۱۹ - فرض لمونځ تروخت دمخه کول ، ۲۰ - د عالمانو غیبت ، ۲۱ - ترك صلواه ، ۲۲ - زکوه نه ورکول که څه هم یوه روپۍ یا یو من وي ، ۲۳ - ترك حج غني ته ، ۲۴ - د مسلمان وهل په ظلم سره ، ۲۵ - هر صحابي ته ښکنځل کول ، ۲۶ - و ظالم ته ناحقه مظلوم په لاس ورکول ، ۲۷ - سحر جادو زده کول او ښوول ، ۲۹ - کوډي کول ، ۳۰ - یاد کړي ایاتونه د قران کریم هیرول ، ۳۱ - دالهی رحمته نا امیدیدل ، ۳۲ - دالهی عذاب څخه بې پروائی ، ۳۳ - د غیر مذبوح یعني مړ زګي غوښي خوړل ، ۳۴ - چغلي کول ، ۳۵ - د قاضي د حکمه څخه مخ اړول چې په حقه سره وي ، ۳۶ - لاړ نیول ، ۳۷ - پر صغیره ګناهونو دوام ، ۳۸ - د بل سره پر ګناه کومك کول ، ۳۹ - د مغلظ عورت لڅول بل چاته ، ۴۰ - مالي حقوق لکه پور زکوة ضبحه سرسایه نه ورکول ، ۴۱ - ځان قتلول ، ۴۲ - سیدنا علی کرم الله وجه ترسید نا ابوبکر رضي الله عنه افضل ګڼل ، ۴۳ - ځان د منیو او بولو څخه نه پاکول ، ۴۴ - خپل پوره اندام قطع کول ، ۴۵ - هغه څوك ازارول چې تا خیرات ورکړی او یا دي احسان ورسره کړي وي ، ۴۶ - د خپل مافوق او امر سره تګي او عذر کول ، ۴۷ - د نجومي فال بین څخه د غیبو خبري منل ، ۴۸ - تر بجلکو کښته پرتوګ د خیال په قسم استعمالول ، ۴۹ - بل ګناه فساد ضلالت ته را بلل ، ۵۰ - د بدي لاري اساس ایښودل ، ۵۱ - بل ته د بدی دپاره د ظلم لپاره امر او یا وسله ورکول ، ۵۲ - د بل سره ناحقه اختلاف کول ، ۵۳ - ظلم بیباکي په حرم شریف کې ، ۵۴ - بل ته غوږ نیول ، ۵۵ - د بل عورت ته کتل ، ۵۶ - مسلمان ته کافر ویل ، ۵۷ - د خپلو ښځو په منځکي بې عدالتي کول څوک ته خپل حق نه ورکول، ۵۸ - په حیض و نفاس کې جماعی کول ، ۵۹ - د شیانو په ګرانی خوشحالي کول ، ۶۰ - د چارپایانو سره جماعی کول ، ۶۱ - د هغي ښځي سره چې پر سړي تل حرامه نه وي یو ځای ورسره کښینستل ، ۶۲ - د غنیمت څخه تر تقسیم دمخه اخیستل

پورته ذکر سوي ۶۲ تـوله کبیره ګناهونه دي

# صغیره ګناهونه

۱ - نا محرمي ښځي ته کتل ، ۲ - جلق وهل یعني په خپل لاس ځان انزالول ، ۳ - د نامحرمي سره یو ځای مجلس کول ، ۴ - پر بل لعنت ویل ، ۵ - د مسلمان بدویل ، ۶ - پر خپل بام پورته کیدل او د بل کور ته کتل ، ۷ - په لمانځه کې خندل ، ۸ - نارینه ته وریښمین لباس ، ۹ - بیله غزا بل وخت په فخر سره تګ کول ، ۱۰ - په مکروه وخت کې لمونځ کول ، ۱۰ - د کوچني اختر په ورځ روژه نیول او د لوی اختر دري ورځي ، ۱۲ - په مسجد کې نجاست داخلول ، ۱۳ - د قضای حاجت په وخت کې قبلي ته مخامخ کښینستل ، ۱۴ - په بیع او شرا کې عیب پټول ، ۱۵ - بیله ضرورته د سپي ساتل ، ۱۶ - د اوداسه په ځای کې بولي کول ، ۱۷ - په جنابت سره اذان کول ، ۱۸ - جنوب مسجد ته داخلیدل ، ۱۹ - پر تشي لاس نیول په لمانځه کې ، ۲۰ - دنیائی خبري په مسجد کې کول ، ۲۱ - د ناکاره ماله څخه زکات ورکول ، ۲۲ - بیله قریبه د ښځي میره کول ، ۲۳ - دوه یا ۳ طلاقه په یوه وخت کې ښځي ته ورکول ، ۲۴ - ښځه په حیض کې طلاقه ول ، ۲۵ - په طهر کې طلاق چې په دغه طهر کې جماعی ورسره سوي وي ، ۲۶ - په هغه ځای چې د ژوندي شي تصویر وي لمونځ کول ، ۲۷ - د غابن پوښل په سرو زرو سره ، ۲۸ - د سپینو زرو یا سرو زرو لوښي استعمالول ، ۲۹ - کافر ته سلام اچول ، ۳۰ - پر شریرو او اهل فتنه باندي وسله خرڅول ، ۳۱ - بیله روژي تر حاجت زیات خوراك ، ۳۲ - سلام په لاس سره ، ۳۳ - سروز ته غوږ نیول ، ۳۴ - حسد تکبر خودبیني ، ۳۵ - په خطبه کې خبري کول






## اوده ګر

ملا عبدالولي ( حلم يار )

کچکول د زړه کې زړونه وړي د مينې وار غواړي
دغه ملنګ د زخمي زړه کلي ته لاړ غواړي
هر يو قدم په بسم الله ږدي چې ستوري ښندي
د شپو په غېږه کې يو سپين د رڼا ښار غواړي
په بل څه نه ځي د سپين مخ د خزانې څه رقيب
پوه سوم مارنګه اوده ګر داسې ښامار غواړي
غلې به نسي زما ناري په زولنو ملګرو
په منصوري نارو کې ونغښتلې دار غواړي
په رنګ د ستورو کې مابنام مالوميدل دا کسه
چرې د نور اخلې تيارو باندې ګوزار غواړي

## ځاوريځه

عبدالنصير ( نصرت )

و دغې خاورې ته به کله څوك کاږه وګوري
چې د ابدال او د ميرويس په څير زلمي دې پراته
په دا سپيرو او وچو شونډو باندې متير وزه
د ملالۍ او د ايوب خو ځو لمسي دي پراته




## قتيل

پرې چې مرور وختونه وخاندي
وخاندي د وخت تپونه وخاندي
کړي چې دشپو کور د سولې ځل رڼا
بيا پکې ښائسته مخونه وخاندي
جوړ له کنډوالو نه ګل کخونه شي
بيا د بورو ميندو زړونه وخاندي
پرې چې د سوري ګوګل شهيد زړه ته
جوړه شي پټې زخمونه وخاندي
قبر کې شهيد ځلمی خوشحاله شي
مست شي د جنډو سرونه وخاندي
ګل د غزل زلفې د خوبانو شي
وخاندي ژوندي شعرونه وخاندي
پورته شي له خاورو ځوانيمرګ زړونه
مړاوي د قبروګلونه وخاندي
جوړي شي ديرې حجرې تودې شي بيا
بيا يې د رباب تارونه وخاندي
مينه احترام د ژوندون لاره شي
بيا د شاځلمو بريتونه وخاندي
پرې چې د ګلونو اميلونو کې
بيا د مستو زلفو ولونه وخاندي
پرې چې د قتيل شعر مستي وکړي
بيا په کې د وخت رازونه وخاندي



## کونړې ځپې

اجمل اند

ترنـــم دی او ســـندري دي نغمـــي دي
ستـا خـبري خـو خـوږي لکـه تپـي دي
تـر سـاحله خپلـه مسـته څوانـي نـه وړي
ستـا وعـدي هـم د کونـړ د سـېلـ ځپـې دي
ویل مې : څه دي ژوندون څه دي نو مسکی شوه
وې یـې وینـي دی لمبـې دی اندیښنـې دي
منـم کلـی مـو لـه شـور او شـرخالي دی
خـو مـو ډکـي لـه جنډونـه هدیـري دي
خدای دداسـي عجیبـه کلـي شـاعر کـړم
ګام پـر ګام یـې رومانونـه دي کیسـې دي

## خنجر لرمه

شهید ملا عبدالواحد ( وحید )

د تورتمـو مـخ تـه خنجـر لرمـه
ښکلـي قـانون د پیغمـبر لرمـه
د قرانـي زیـب او ښکـلا نـه خنـي
نسـته زینـت پـدې بـاور لرمـه
خان کـره را ښ‌کیـل د شریعت لوموکـي
هلتـه شـفیع خیرالبشـر لرمـه
زه د ایمـان سـپیڅلي تال کـې زانـګم
سـپر د اتم پـه وړانـدي سـر لرمـه
دانـګي چـې تـل د قربانـی ډګر تـه
خان د هغـه کـاروان رهـبر لرمـه
د تـور ظلمـت بچـوني را بـه نشـي
لاس کـې د عـدل ورتـه لمـر لرمـه
شـمله بـه دنـګه د هیـواد سـاتمه
وحیـد د ننـګ پـګړي پـه سـر لرمـه

## دملت قاتل

مرمحقق س. مجاهد

د حـق لاره دې تـرک کـره پـه غلطـه شـوې روان
ای دوسـته د شیطان
تاریخ دې خپل خراب کړ ، هـم دې بـایلوده ایمـان
ای دوسـته د شیطان
پـه شـر او پـه فساد مخلـوق دې کـړ بـر بـاد
بې علمـه بـې عملـه وې پـوره نـادان
ای دوسـته د شیطان
ډلـګی یـې د نظـار د خلـکو نـه بـېزار
نـبع د فسـادونو یـې ښکـه بـې ګومـان
ای دوسته د شیطان
کولـې دې غلاګانـي نشـې او نخاګانـي
تر اوسه چې مشهور یې لا پـه نـوم د ( قومـاندان )
ای دوسته د شیطان
تالا دې بیت المال کړ ملت دې تول پایمال کـړ
مرکـز دې پـه کـولاب کـې قومـانده کـوي روسـان
ای دوسـته د شیطان

## غزل

شمس زی

د ژونـد شـاپیری راولـه ډولـۍ د سـو کالـی
د کلـي مـازدیګر تـه نـاوکی د سـوکالی
زهرین جام دبیلتون څښلۍ په ستورو وخت شمر دی
مابنام ژر را پورتـه کـړه سپوږمۍ د سـوکالی
سـپیڅلو پرښتـو د عواطفـو دې چـوپتیـا تـه
لـه غیبـه را ډالـۍ کـړی ازانـګۍ د سـوکالی
تیارپرېږدې چې هسك کړي رڼې سحرپس له مودونه
زمـا د زړه پـه دښتـه کـې کیـږدۍ د سـوکالی
ورځه د صبـا پیغلـي مـرور پسـرلی راوړه
تـازه چـې موګلبڼ کـې شي غـوټی د سـوکالی

## غزل

بازمحمد (صافی)

د ژوند ستوري مو مات سول له مداره ښوئیدلي
هم لاس د یاراني مو له دلداره ښوئیدلي
که ښکلي که ښکلا وه یو په بل پسي شهید سوله
هم سر مو دی د لیچو د سپین هیاره ښوئیدلي
هر د زړه ګلدان مو دی د زخم د ګلو نو ډک
سر مو د مالیار لاس له بهاره ښوئیدلي
مور ویل د ږیري مرغلري به یې وشکوي
د وخت د موسی لاس مو تر انګاره ښوئیدلي
تور دیوانو پورته کړ د توري شپي دا تور بیرغ
قاصد د وړانګو ګوره له سهاره ښوئیدلي
یو کابل مو څو واري ډګر د کربلا سو
اوس قدم د هر غلیم د کندهاره ښوئیدلي
اوس به یې ډیر خلک د څرمني څه تسمي پاسي
سور لال تاج د شاهی چې له ښاماره ښوئیدلي
پنډي به کوترو غوندي نجوني په ګودر کې وي
د باز پنجه خطا سوه د چناره ښوئیدلي

## اختره

شیراحمد ( بریا )

اختره نوی شه د رنګ په جامو
وینو چې هرڅه رنګا رنګ په جامو
د بم له دورو مو زړه سترګي مینځي
هره خوښي پټه د جنګ په جامو
د هوسا یې ناوې ته شال نلرو
له ویره څه غواړو کلنګ په جامو
د اوښکو پانو کې مسکا لیکل
شمې اوربري د لونګ په جامو
خومره غوښتني یې په زړه پاتي شوې ؟
د ستور خو پېژني ملنګ په جامو
د زړه کفس یې په کلفو برلي
پټ مشه زړه ( بریا ) د رنګ په جامو

## سپینه لمن

سعدالله سعید زابلی

درملنه به په وینو د وطن کړم
خړي دښتي بې سمسور د شین چمن کړم
راشنه بې کړم دري په شنه جامه کې
هره پوله بې د ګلو جوړ ګلشن کړم
شمله به یې د ویاړ په ننګه خلي
افتخار بې ددې عصر ستر پتمن کړم
نور به نوي د پر دو تر جبر لاندي
دا زخمي زخمي زړګی به یې روغمن کړم
چې ګتلي مو لیلا د خپلواکي ده
په ګلونو بې د ویاړ سپینه لمن کړم
اوس بې وګوری جهان په خړو سترګو
په سیالي بې د رقیب زړګی غمجن کړم
د سعید د زړه ارمان به هله خیژي
چې په ننګه یې جامي د ځان کفن کړم

## خمار

عزت الله "امید"

تږی یم اوبه مې کړه خمار مې سه
زه به دي منصور سم ښکلی دار مې سه
ستا د محبت لمبو سوځلی یم
نه درنه پېرېږمه انګار مې سه
توره به د تیکي در ته وباسم
بیا نو پروا نه لرم اغیار مې سه
راسه لږ خو ژوند په محبت تیر کړو
یار مینه سه نګار مې سه
زه ستا په ( امید ) یم ګوندي خپل مې سي
ښکلی د سیني ښکلی پرهار مې سه

# له بهرنیو ادبیاتو څه ډول ګټه واخلو

جلال (خپلواک) خوست

د ځینو حاکمیت غوښتونکو ادبیاتو نوره په ځومره تېز او دقیق حرکت سره د یوه قام او ملت پوازې ذهن بلکې مذهب عنعنه رسم او رواج او قوم ټول له منځه وړي دا ځکه چې نوی لیکوال ځنګه د هنر او ادب دروازه د خان پر مخ را پرانیزي نو په اول قدم کې هر څه چې هغه ته په نظر ورځي بس هم هغه ور په سکلې او په زړه پورې معلومېږي حال دا چې د ادب جهان په سلګونو بېلا بېلې لارې او مفکورې لري خو اصل ټکې چې ده ته باید په پام کې ونیول شي هغه دا دی چې لیکوال باید خارجي ادبیات په داسې حرکت کې تر څېړنې لاندې ونیسي چې خپل ادب کلتور او وطني عنعني ته تري زیان ونه رسېږي له پردیو ادبیاتو څخه ډول معمولاً هغه وخت را منځته کېږي چې نوی لیکوال د پردیو ادبیاتو څخه څه را ژباړي او ترجمه کوي یې زه دا وایم چې ګټې له نورو ادبیاتو څخه د ګټې نه حاصل د نورو خارجي ادبیاتو څخه څه را ... خپلې ژبې ته را خپلول ډېره ګټې ... په ډول زموږ د مطالعینو فکر ... څېړي ذهن یې ورسره تقویه ... هغه فکر یا په بل عبارت هغه ... چې پواسطه یې پوازې د خپل ... انځوروي کله چېري دی ... مطالعه ولري بیا به یې هر وخت زړه ... چې توله تری په خپل فکر کې ... کړي او د انتها ټکی یې وموندي خو ... چې زموږ نسل (نژاد) دود د ... عنعنه د ټولو نړیوالو سره توپیر لري همدا ... باید زموږ ادبیاتو ته هغه څه را ... هغه څه خپلې ژبې او ژبوالو ... را خپل شي چې اجتماعي . سیاسي او طبعي ګټې ولري په کار ده چې نو لیکوال داسې څه موږ ته وښیي چې د خپلو ټولو عنعناتو په پام کې نیولو سره مو د اجتماع په تقویه او د ټولنې په جوړولو کې را سره مرسته وکړي یا څوک له کومې سیاسي پېښې څه ډول ووت !؟ څنګه یې خان تري نه وژغوره !؟ کیدای شي چې موږ ته هم دا لاره هواره کړي چې څه ډول سیاسي ډګرونه وهلی شو د مثال په ډول که موږ داسې څه مطالعه کړو چې په پلاني خای کې کوم غټ مارغه یا ښامار یا کوم بل حیوان و داسې به یې د بچو لپاره خاله یا کوټه جوړوله داسې په تکلیف او خوارۍ به یې بچو ته خواړه را وړل داسې په زیار به یې بچیان لویول او ...

نو کیدای شي له موږ سره هم دا حس پیدا کړي چې څه ډول خان او بچیان باید ژوندي وساتو څومره حوصله باید په دا لار کې ولرو او څومره پرهادي نیت پیدا کړو داسې په زرګونو معلومات په هر صورت د خپلې ژبې او ادبیاتو لپاره ګټور بللی شو خو یو ټکی چې د ادب او زموږ د عنعنې زړه بړېښوي هغه دادي چې داسې کیسه یا بل مطلب را ژباړل شي په هغه کې پرته له مذهب او عنعنې په پام کې نیولو څخه کرکټر داسې کاروایانې کړې وي یا داسې ټکروټه او تصادفات پکې منځ ته راغلي وي چې تعریف او تحلیل یې پوازې او پوازې مینه اودنیا عشق وي او د هرې پېښې ګرد یې په همدا نقطه باندې پروت وي هیڅ معنی نلري او که لري یې هم نو هغه به دا وي چې اوس خپله زموږ ځینې لیکوالان په کیسه کې عشقي تصادف داسې ځای ته ورسوي چې که اصل جمله ذکر نکړي هم خو لوستونکي ته ترجنسي تراو پورې به لاره هواره کړي او هغه خپله یوه شي چې داسې کیدل نو دا به هم شوي وي زما په فکر دا رنګه کیسه لیکل ژباړل غیر له تاوانه هیڅ ګټه نلري د مثال په ډول پلانی چې خپله مېرمن هم ورسره وه د لامبلو ځای څخه چې پوره لس شپې یې هلته تېرې کړې وي مازدیګر مهال ښار ته را ستانه شول څرنګه چې دوی ډېر ستومانه وه نو په یوه هوټل کې یې خونه په کرایه ونیوله شپه یې هلته تېره کړه سبا ته چې د پلاني د مېرمنې مخ ته یې د کافي پیالې ډکې ایښوې ناڅاپه ټیلیفون زنګ وواهه هغه کوم ملګری د یوې میلمستیا لپاره کوم لیرې ښارته وغوښت له مېرمنې سره یې د مسلحت څخه وروسته مېرمن هلته پرېښوده او دی ولاړ په دغه ورځ دې هوټل ته د هغه د مېرمنې یو پخوانی هم صنفي هم راغلی وو دوی سره وپېژندل بیګا ته یې تر ډېره ناوخته پورې په داسې حال کې چې دم په دم به یې د شرابو ګیلاسونه تازه کول یو تر بله ټوکې ټکالې مسخرې او مجلسونه کول ترڅو یې چې خاوند را ستنیده پخوا درې شپې وتلې وې نو دا ډول مطلب صرف لدې لپاره کارول په کار دي چې د یو ولس چې حجاب او ستر ورته د مذهب او عنعنې له مخې تر هر څه محبوب وي فکر ورباندې واړوي او ذهن یې هغه څه ته را جلب کړي چې په عمرونو یې منلي خو څه په عقل کې هم نه وي را ګرځېدلي نو موږ ولې په لوی لاس خپل راتلونکي فکرونه او خواص په نورو پورې وترو !؟ راځئ که ریښتیا خدمت کولو ته هو ښېږو نو ددې پر ځای چې دا ډول مطالب ولیکو یا یې را وژباړو په کار ده چې هغه څه د لوستونکو مخې ته کښېږدو چې اجتماعي او سیاسي فکر تري واخلي او د ژوندي پاته کېدو په لاره کې ورباندې خندونه هوار کړي نه هغه څه چې په شراب خانو کې تر سره کیږي

# اسلامي اصطلا حات او تعريفات

عبدالجبار (مشفق) امرنجان، ارغنداو

۱ - نیت : زړه د یوه داسي شي و خواته چې هغه د خپلي ګټي او غرض سره موافق وبولي ، مایلولو او متوجه کولو ته نیت وایي نیت د ارادې او قصد معنی لري

۲ - اخلاص : صرف الله تعالی ته د تقرب او د هغه د رضا خالص قصد درلودلو حالت ته چې په هغه کې د محلوق خوښي او یا خپل نفسي غوښتني په نظر کې نه وي نیولي سوي اخلاص ویل کیږي

۳ - تفویض : خپل ځان الله تعالی ته سپارل او هغه متصرف حقیقي ګڼل او د خپله ځان څخه کم حالت یا نظام نه تجویز ول ، تفویض بلل کیږي د تفویض مانا ده چې تدبیر پرېښودل سي بلکه د تفریض صرف دا مانا ده چې بیله الله تعالی پر بل چا یا شي د امید نظرونه درلودل سي تدبیرو کې اوتدبیرنتیجه الله (ج) ته وسپارل سي

۴ - تقوٰی : تقوای د بیرېدلو او ځان ساتلو په مانا استعمالیږي ، د انسان و یوه داسي حالت او کړني ته چې په هغه کې د ګناه د ارتکاب څخه بېره احساسوي او د معاصیو څخه ډډه کوي او ځان ژغوري تقوای ویل کیږي .

۵ - تواضع : د انسان د مقام هغه حالت ته چې خپل ځان لاشي ، عاجز ، فروتن ، بې غروره اوبې تکبره وبولي او همداسي جانته متواضع ویل کیږي

۶ - توکل : صرف پر وکیل او کار سازه باندي د زړه تکیه او ډاډ توکل بلل کیږي په هر مشروع کار کې د تدابیرو نیول او اسباب برابرول او پر الله تعالی باندي اعتماد کول د توکل عمل دی .

۷ - رجا : د محبوبو شیانو لکه فضل ، مغفرت ، نعمت او جنت د انتظار څخه په زړه کې د راحت را پیداکیدل او ددغو شیانو د حاصلولو دپاره د تدبیر او کوښښ کول د رجا څخه عبارت دي .

۸ - رضا : (ترك الاعتراض علی القضا) نه په ژبه او نه په زړه سره پر قضا باندي اعتراض کولو او د الله تعالی پر قضا او قدر باندي د رضایت څرګندولو ته رضا ویل کیږي

۹ - ذهد : رغبت د شي پرېښول او د هغه څخه د بهر شي و خواته مایل کیدل ذهد بلل کیږي مثلاً د دنیا رغبت پرېښول او د اخرت راغب کیدل ذهد دي

۱۰ - شکر : نعمت د حقیقي منعم الله تعالی د خوا ګڼل ، د هغه څخه خوښیدل او د هغه اقدس ذات اطاعت په فکر ، خوله زړه ، غړو او د اوامرو امتثال ته شکر ویل کیږي (النعمه حاله ملایمه النفس) یاني نعمت هغه حالت دی چې د نفس دپاره خوشګواره وي .

۱۱ - صبر : (حبس النفس علی ما تکره) د کراهت او مصیبت په حالت کې د نفس قابو او حبس ته صبر ویل کیږي . صبر درې ډوله دي .

الف - صبر علی العمل ب - صبر في العمل ج - صبر عن العمل

الف - صبر علی العمل دا دی چې شخص پر یوه کار یا عمل باندي قایم پاته سي مثلاً د لمانځه ، روژې ، زکات او نورو دایمي پابندي او بې له ناغې څخه تر سره کول

ب - صبر في العمل دا دی چې د عمل د اجرا په وخت کې نفس وبلي خواته د میلان او التفات څخه را وګرزول سي مثلاً د طاعاتو د پرځای کولو په وخت کې هغه د خپلو ټولو حقوقو او ادابو سره په ډاډ او سکون اداسي او ټوله توجه و عمل ته متمرکزه وي د مثال په ډول د لمانځه د اداکولو یا په ذکر کې د مشغولیت په وخت کې نفس ته و فهمول سي چې په دغه وخت کې بیله لمانځه یا ذکر څخه بل کار نه سي کولای

ج - صبر عن العمل هغه ډول صبر دی چې نفس ، د ممنوعه اشیاوو او کارو څخه را وګرزول سي . مثلاً صبر عن الشهوات چې د لباس ، طعام ، کلام ، رجال ، نسا او داسي نور شهوتونه پکښې دا خل وي

۱۲ - غیبت : په یو چا پسي دا سي خبره کول چې هغه یې واوري ناګواره او درنه ورته تمامیږي که څه هم دغه خبره په هغه شخص کې موجوده وي او که چیري نوموړې خبره په هغه شخص کې موجوده نه وي نو د ا بیا بهتان بلل کیږي .

۱۳- اسراف : بې ضرورته د یوه شي را نیول یا مصرفول اسراف ګڼل کیږي یا د حد څخه تجاوز اسراف دی

ضرورت پر دوه ډوله دی یو واقعي او بل فرضي واقعي هغه ضرورت دی چې بېله هغه دیني یا دنیوي کار بندیږي یا د سخت مشکل او پریشانی سره ځوك مخامخ کیږي

فرضي ضرورت هغه دی چې کمه انتها ونه لري او بل نوم یې حرص دی

۱۴ - بخل د هر هغه شي مصرفول چې شرعا یا مروتا ضروري او د تنګي یا سپما په کښي وسي بخل بلل کیږي.

۱۵ - بغض، کینه کله چې د قهر په حالت کې د چا سره د انتقام قدرت نه وي نو دغه عقده د ځانه سره ساتي او پر زړه یې یو ډول دروند باروي او په اختیار او قصد سره د یو چا د خرابۍ او بدۍ ارمان په زړه کې لري

۱۶ - تکبر خپل ځان په کمالیه صفاتو کې تر نورو لوړ او غټ بلل تکبر بلل کیږي

۱۷ - حرص ددنیا وطرف ته توجه او میلان کول او په مال او دولت او نورو داسي شیانو پوري زړه تړل او مشغولیدل حرص بلل کیږي

حرص د ټولو ناروغیو ریښه ده او ام الامراض بلل کیږي جګړې او فسادونه د حرص زیږنده دي د بد کاریو منشا هم د [illegible] حرص دی د بزله احلاقو اصل کبر دی د جاه او حلال هوس دی. ځکه نو د کبر نسبت هم ددغه حرص څخه دی

۱۸ - حسد پر یوه شخص باندي د یوه چا ښه حال بد او نا ګواره تمامېدل او دا ارزو کول چې دغه ښه حالت د هغه څخه زایل سي حسد بلل کیږي.

۱۹ - ریا: د الله تعالی په طاعت کې دا قصد کول چې د خلګو په نظر کې زما قدر وسي او په ښه کار کې ځان نورو ته ښکاره کول ریا بلل کیږي

۲۰ - عجب خپل کمال و خپل ځانته منسوبول او دا بېره نه درلودل چې ښایي دغه کمال سلب سي او دا د نفس یو خفي قید دی چې غواړي ممتاز وي او د خپل امتیاز څخه خوند واخلي.

۲۱ - غضب د انسان هغه حالت چې د قهر او غصي په حال کې د غچ اخیستلو دپاره پیدا کوي غضب بلل کیږي.

# په ژبه پوري مربوط اصطلاحات

پښتیالی "کندهاری"

۱ - وضاحت (فصاحت): د ښې انشا یا لیکني مهم صفت وضاحت دی، چې لیک او وینا باید هیڅ ډول ابهام ونلري او دا کار هغه وخت کیږي چې د کلماتو دلالت پر خپل مانا باندي واضح او روښانه وي. د جملو سبک باید واضح وي، معترضه جملې باید رانسي او په خبرو کې بچې، کږوسي او لمسي پیدا نسي

۲ - صراحت: د لیکني هغه ډول صنعت ته ویل کیږي چې په لیکنه کښي ترکیبي صفتونه موجود نه وي او الفاظ د مقصود او مانا ګانو سره تناسب ولري. د صراحت او وضاحت توپیر دا دی چې هر صریح واضح وي مګر هر واضح صریح نه وي د عوامو کلام واضح وي مګر صریح نه دي ځکه چې ترکیبي صنعت پکښي وي، صراحت هغه وخت په کلام کښي پیدا کیږي چې الفاظ فصیح وي او د بیان طرز یې داسي وي چې ماناوي یې یوپر بل بار نه وي او هره مانا ځانته حیثیت ولري.

۳ - سهولت: د سهولت څخه مراد پر اسانه لاز تلل دي د انشا یا لیکوالی خاوند ته په کار دي چې په انشا کې د ژبې لپاره اسانه او بې تکلیفه لاز پیدا کړي، پخپلو لیکنو او کتابو کې له ډیرو عمیقو الفاظو او مشکلو تعبیراتو څخه کار وانخلي.

۴ - انسجام: په لغت کې د اوبو جریان ته وائي د ادبیاتو په اصطلاح کښي هغه کلام منسجم دی چې لفظي او معنوي تغیرونه پکښي موجود نه وي.

۵ - جزالت: جزالت هغه ډول صنعت ته ویل کیږي چې ماناګاني په مناسبو الفاظو کښي ادا سوي وي.

۶ - اتساق: هغه ډول ادبي صنعت ته ویل کیږي چې په لیکنه کې د معایتو ټینګ اتصال او ارتباط موجود وي یا په بل عبارت که چیري په کلام کښي تناسب ښه ساتل سوی او جملې یو تر بله ارتباط ټینګ کړي وي نو دغه ډول صنعت ته اتساق ویل کیږي.

۷ - ساده ګي: هغه ډول ادبي صنعت ته ویل کیږي چې لیکنه ډیره ساده او د خلګو فکر او فهم ته نږدې لیکل سوی وي او لیکوال د ساده سبك پیروي کړې وي.

۸ - ګرامري لحاظ: هغه ډول صنعت ته ویل کیږي چې په لیکنه کښي د ژبې قوانین او قواعد مراعت سوی وي یعني اوازونه کلمې او جملې په صحیح ډول استعمال سوي وي، په افعالو کښي د زمانې مراعت سوی وي.

۹ - د لغاتو استعمال: په لیکنه کې څومره چې امکان لري باید د هغې ژبې (چې لیکنه په کیږي) سوچه او مروج لغات استعمال کړه سي او بېله کوم ضرورت څخه د بلې ژبې لغات په کار یونه وړل سي

۱۰ - د الفاظو او مانا تول: کله چې لیکونکی یو څه لیکي باید یوه اساسه او دقیقه تله ور سره موجوده وه چې د هغه پواسطه د لفظ او مانا تول په ښه شان وکړي. د مثال په توګه، یو چا لیکلي وي (چې د محل خلکو ملا له ملاتې څخه ګوښه کړ) دلته چې د ملاتې کلمه استعمال سوې ده دا دومره ښه نه ده لکه چې دامامت کلمه مناسبه ده ولې چې خلګ کولای سي چې ملا د امامت څخه ګوښه کړي مګر د ملاتې څخه یې ګوښه کولای نسي.

۱۱ - د لیکوال عقیده: هر لیکوال چې څه لیکي باید د هغه لیکونکي د زړه او وجدان اواز وي او پر خپله لیکنه ټینګه عقیده ولري

۱۲ - نظم او ترتیب: په لیکنه کې ګډوډي او بې ترتیبی ډیر غټ عیب دی نو باید په لیکنه کې د کلمو او جملو ترتیب او تنظیم مراعات سي. موضوع باید داسي پای ته ورسیږي چې د مضمون سلسله بې نظمه او بې ترتیبه نسي، په همدغه توګه ابتکار، تخیل، ذوق، حافظه، ذکا، د لیکوال شخصیت خلاف، شجاعت او د فکر ازادي د لیکوالي د پرمختګ او انکشاف دپاره ضروري خنځیرونه دي باید مراعت سي. پای

# داره مار

ليكوال : جبران خليل (جبران) ژباړه ويس احمد بيكس

هغه د لوی واټ په غاړه ناست وو د تلونكو او راتلونكو خلكو نه يې د خير خيرات غوښتنه كوله.

غوښن ځوان تر بيګا پورې څو څو ځله د څلور لارې په سر د خپلې بدبختۍ كيسه تكرار كړه مګر لاسونه يې لكه چې وو هماغسې تش پاتې شول.

خلك ورته ځير شول. ښكته پورته به يې ښه ژور نظر پرې زغلاوه خو كله چې به يې د ځوان دنګې ونې او غوښن بدن ته پام شو له ځان سره به وبوزنيدل او خپله لاره به يې ونيوله.

شپې خپل بيرغ ورپاوه. د ځوان شونډې وچې شوې وې او ژبه يې تپې خو لاسونه يې د خيټې په ځير هماغسې خالي پاتې شول. هغه له خپله ځايه پاڅيد او له ښاره دباندې يوه ځنګل ته ووت هلته د ګڼو ونو تر سيورې لاندې كيناست او په خپل شومه برخه يې ساندې پيل كړې. ژړل يې تر دې چې نژدې وه د لوږې او غم له لاسه په ځمكه ولويږي. ناڅاپه يې له اوښكو ډكې سترګې اسمان ته ونيولې او پرته له دې چې په ځان پوه شي په خبرو يې دا سې پيل وكړ:

لويه خدايه! څو څو ځلې مې خانانو نوابانو ته د كار لپاره خوله چينګه كړه خو هغوی چې به زما په جامو لګيدلي پيوندونه وليدل راوټې شرلم. د ښوونځيو ورونه مې هم ور وټكول مګر های چې لاس مې خالي وو چا د ننه هم نه ور پريښودم. رښتيا وائي چې تشه لاسه ته مې دښمن يې. چا په دوه وخته ډوډۍ هم ورسره مزدور نه كړم.

ناچاره شوم او خلكو ته مې د ګدا لاسونه اوږده كړل خو دلته هم بدبختۍ زما لمنه پرې نه ښودله. هر چاته چې به مې لاس ور اوږد كړ ښه په ځير به يې راته وكتل او له ځانه سره به يې وويل: دا دومره پنډ غوښن سړی دی كار ته يې ملا ماته او ګداګرۍ ته هيڅ بلا نه دي وهلی. پريږده! دغسې حرامي ته خير وركول نه دې پكار......

لويه خدايه! زه خو مې مور ستا په حكم زيږولی يم او ستا په حكم ژوندی پايم. ستا په نړۍ كې زه هم برخه لرم خو ستا را كړې برخه را باندې ستا بندګان نه لوروي. زه خو ئی ستا په نوم له خلكو غواړم خو خلك دومره شوم ولې دي چې ستا په نوم يوه مړۍ هم نه راكوي؟

د غمژن ځوان څيره واوښته او سترګې يې د سرې لمبې په ځير ځليدې. هغه پاڅيد او د ونې له وچو ښاخونو نه يې يو لښته را غوڅه كړه. مخ يې د ښار خواته وګرځاوه او په لوړ غږ يې چيغې كړې........ ما د خپلې تندې د خولو په بيه له خلكو نه ژوند وغوښت خو چا راته كړ. اوس به نو زه د خپلو متو په زور هغه لاس ته راوړم. ما د مينې په نوم له انسانانو نه ډوډۍ وغوښته.

مګر وږی انسان زه وږی پريښودم. دا ځل به زه له همدغه انسان نه د ظلم او سركښۍ له لارې نه يواځې ډوډۍ نه بلكې نور ډير څه غواړم. انسان مجبوره دی چې دا هرڅه به راكوي شپې ورځې تيريدې...... ځوان د خپل غرور د هار لپاره پرله پسې سرونه وهل او د خپل حرص د ماڼۍ د ودانولو لپاره يې د ارواو هيكلونه ړنګول تر دې چې د ميړانې او سرټوب غږ يې د هيواد ګوټ ګوټ ته ورسيد. شتمني يې تر دې بريده ورسيده چې څوك يې په شمير پسې نه شوای رسيدلای د هيواد غلو او داړه مارانو ورته د قدر په سترګه كتل او حكومتي چارواكي يې له نامه نه په لړزه وو.

او په پای كې چې ډله تپله يې لويه او ځواك يې ډير شو پاچا په ويره كې شو او په خپل دربار كې يې ځای وركړ څه موده وروسته يې د " وزير " او بيا " نايب ځوكۍ ته لوړ كړ. او په پای كې د پاچا تاج او تخت ورته په ميراث كې پاتې شول. په دې ډول بخيل انسان د ښار يو بې وسه سړی د خپلې كنجوسۍ له امله داړه مارۍ ته اړ ايست او د خپلې بې رحمۍ له امله يې يو سوله خوښونكی انسان په يوه وينه څښونكي قاتل او جنايتكار واړاه وه پای.

# څو شيبې د خندا په لټون



نامي باز کندهاری

## بې پوښتنې ښار

يوه ورځ يوې ګيدړې په ببره څغستله په لار کې. يو چغال په مخه ورغی پوښتنه يې ځني وکړه: خير دی ګيدو انا! ولې په داسې سوي ساه څغلې؟

ګيدړې ځواب ورکړ: ته خبر نه يې چې پاچا حکم کړی دی چې ټول اوښان دې له منځه يو وړل سي.

چغال ځواب ورکړ چې ستاپې د خيره. ته وګوره اوښ وګوره. ګيدړې ورته وويل: دا ښار ناپرسان (بې پوښتنې ښار) دی که يو وار خلګو وويل چې دا هم د اوښ چيچی دی نو بيا يې په چا منې او سپينوې چې دا د اوښ جونګی نه دی.

## د تلتك جنګ

د ژمي په سړو کې يو سړی د خپلې کورنۍ سره په صندلي کې ارام ناست وو. د کور ځنګ ته يې د دوو نفرو سره جنګ سو. ښځې يې ورته وويل ور ووزه دا بې چاره ګان سره خلاص کړه. خو دده زړه نه کيدی. بالاخره يې مجبوره کړ چې ور ووزي او ګوابښ وکي. ده هم تلتك پر سرا را واچاوه او ور ووتی او په منځ کې ور ولوېدی. هغو په حملو کې دده تلتك سره کش کي ترڅو چې څيري او پر منځ دوه ځايه سو نيم د يوه لاس ته ورغی او نيم د بل هغو چې دا حال وليدی و بېرېدل او وتښتيدل. دا سړی حيران بيرته خپل کور ته راغی ښځې يې پوښتنه ځني وکړه چې سره خلاص دي کړه؟ ده ورته وويل هو. هغې سوال ځني وکړه چې پر څه شي يې جنګ وو ده جواب ورکی چې زما پر تلتك يې جنګ وو.

## موږك او فيل

يوه فيل په ډير فخر سره موږك ته وويل: دا ته ولې دونه وړوکی يې. هغه په عاجزی ځواب ورکی چې په کوچنيوالي کې پر ما ډير غمونه او ناجوړی راغلي دي که نه نو تر تا به لاغټ وای.

## د فيل ډاکتر

يو بې چاره سړي د معاش د پيداکولو دپاره د يوه پخوانی پاچا په دربار کې چې ډير فيلان يې درلودل ځان يې د فيل ډاکتر معرفي کړی وو. يو وخت د پاچا يو فيل ناروغه سو هغه د فيل ډاکتر يې را وباله هغه بې چاره چې تر اوسه يې فيل نه وو ليدلی ډير حيران ولاړ وو د لکۍ او شونډك خوا يې نه سره پيژندل اوفکر يې کاوه چې البته شونډك به يې لکۍ وي.

## دسوټي ګزار

يوه سړي پر بوده باندې په خورجين کې بنګړي را بار کړي وه او په کليو کې يې خرڅول يو مزدور کاره سړي چې سوټی يې په لاس کې وو په هغه درانه سوټي سره د خورجين يوه خوا په زوره سره ووهله او د مالك څخه يې وپوښتل چې کاکا دادې څه شي را بار کړي دي هغه په داسې حال کې چې پوهيدی چې د خورجين د يوې خوا ټول بنګړي مات سويدي په ځواب کې يې ورته وويل چې که دې د سوټی يو بل وار پر وکی نو مې هيڅ نه دي را بار کړي.

## روژه خوړل

يوه ورځ يو سړي په روژه کښې مستي خوړلې يو سړی ورته راغلی او ورته وويل: روژه خوری؟ ده ورته وويل! يا، روژه نه خورم مستي خورم!

ده ورته وويل مستي خو خوري خو په روژه کې يې خوري. ده ورته وويل يا په روژه کې يې نه خورم په کاسه کې يې خورم.

## استاد او شاګردان

معلم صاحب شاګردانو ته وويل چې د چا ښيرا قبليږي ټولو شاګردانو ګوتې پورته کړې يو هلك چې ډير ټمبل و هغه ګوته نه کړه پورته او وروسته استاد پوښتنه ځني وکړه چې تا ولې ګوته نه کړه پورته هغه په ځواب کې ورته وويل استاده که زما ښيرا قبليدای، نو اوس به يو معلم هم نه وای پاته.

## استاد او شاګرد

يو ورځ استاد شاګرد ته وويل چې هلکه يو رسم وګاږه چې يو سړك او پر هغه سړك باندې يو موټر وي.

شاګرد چې کله ولاړ سو سړك يې رسم کړی خو موټر يې نه سوای رسمولای نو وروسته يې استاد ور ږغ کړه چې استاده رسم مې وکښی استاذچې وکتل نو ورته ويې ويل چې موټر کمه دی شاګرد ورته وويل چې استاد تا مخ اړولی وه هغه د وخته تير سو.

## پا چا او ليونتون

وائی يو وخت د يو دولت پاچا و ليونتون ته ورغی او غوښتل يې چې د ليونيانو نه ځان خبر کړي نوکله چې ليونتون ته ورغی او غوښتل يې چې اول ځان ليونيانو ته معرفي کړي نو يې ورته وويل چې زه ددي دولت پاچا يم زه راغلی يم چې ستاسي د حال څخه ځان خبر کړم پدې وخت کې يو ليونی مخ ته راغی او ورته وئی ويل پاچا صاحب کله چې زه اول دلته راغلم ما هم داسي فکر کوی چې زه ددي ځای پاچا يم مګر اوس هيڅ شي نه يم د ټوکو رالېږونکي:

۱ - محمد داود وفا، ۲ - احمد الله، ۳ - نجيب الله، ۴ - محمد ولي هلمند، ۵ - جاهد احمد او عزيزاحمد الکوزی.

# او هغه وخت چې غله غازیان سول

ویل کیږي چې د امیرالمومنین هارون الرشید په وخت کې د لوټمارانو او غلو یوه ډله د بغداد او بصري ترمنځ په لویه لاره له شوکي وروسته یوې مسافرخانې ته ورغله د داړه مارانو مشرد مسافرخانې څښتن ته په دروا غو ځان او ملگری د مجاهدینو په بڼه ور وپیژندل اود میلمستون له څښتن نه یې د شپې تیرولو لپاره ځای وغوښت د میلمستون څښتن چې دا خبره واوریدله نو د خدای تعالی درضا په نیت یې د هغوی چوپړ ته ملا وتړله او تر سهاره پورې د هغوی هر کار ته ملا تړلی ولاړ وو د شپې د خوب په وخت یې هغوی ته قیمتي بستري هواري کړي ماخوستن چې غلو د اوداسه نیت وکړ نو د میلمستون څښتن ورته اوبه تیاري کړي. له اوداسه وروسته یې د غلو نه پاتې شوې اوبه خپلې ماندینې ته ورکړي او ورته وئی ویل چې په دغو اوبو باندې دی د خپل هغه شل زوی لاس او پښې مالش کړه خدای ته دا ډیره اسانه ده چې ددغو غازیانو په طفیل به یې روغ کړي. سهار داړه ماران بیا په خپل کار پسې ووتل. گرده ورځ یې غلاوې او شوکې وکړې او د شپې بیرته هماغه میلمستون ته راغلل. دلته چې گوري چې د میلمستون د څښتن هغه شل زوی منډې وهي او روغ رمټ شویدی د غلو مشر د میلمستون له څښتن نه وپوښتل چې دا ماشوم خو سهار شل شوټ پروت وو او اوس دا دی منډې وهي دا څنگه؟ د میلمستون څښتن ورته وویل: چې دا خو موږ له تاسې نه پاتې شوې د اوداسه اوبه د هغه په بدن وموښلې او خدای تعالی ستاسې غازیانو په برکت روغ کړه د غلو مشر دا کیسه خپلو ملگرو ته وکړه ملگري یې د کیسې په اوریدو په ژړا سول ښه ډیر یې وژړل او همدا مهال یې له غلا او شوکمارۍ نه توبه وایستله او د خدای تعالی په لاره کې جهاد ته ووتل ترڅو چې ټولو د شهادت جامونه په غاړه واړول



## بوډۍ او جنت ... ؟

حضرت حسن (رض) فرمائي: چې یوه ورځ یوه سپین سرې (بوډۍ) ښځه رسوالله صلی الله علیه وسلم ته راغله او عرض یې وکړ: یا رسول الله (ص) ماته دعا وکړه چې جنت ته ولاړه سم رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل د فلانې مورې! سپین سرې جنت ته نه شي تلای سپین سرې ښځې دد غې خبرې په اوریدو سره په ژړا سوه. دغه مهال رسول الله صلی الله علیه وسلم خلکو ته مخ ور واړوه او ورته وئی فرمایل هغې ته ووایاست چې بوډۍ ښځې په دغه سپین سر جنت ته نه استول کیږي (بلکې ځوانیږي او بیا به جنت ته ځي. (شمائل ترمزي، ۲۰ ص)

## کار ساز ما . . .

امام رازي رحمت الله علیه د رب العلمین د تفسیر د لیکلو په وخت د حضرت ذوالنون مصري رحمت الله علیه لاندې کیسه نقل کړیده. حضرت ذوالنون مصري رحمت الله تعالی علیه فرمائی: چې یوه ورځ د جامو مینځلو لپاره د نیل د سیند غاړې ته لاړم که گورم چې یو پنډ او تازه لړم مې تر سترگو سو چې د سیند د څنډې خواته منډې وهي. څنډې ته له رسیدو سره سم د اوبو له منځ نه یو کیشپ را وخوت او ځان یې په لامبو لامبو د لړم خواته را ورساوه. لړم هم بې له ځنډه د هغه په شاسپور شو او کیشپ بیرته د سیند هغه بلې غاړې ته په لامبو پیل وکړ ما هم خپلې پایڅې را ونغښتلې د لړم او کیشپ د ننداري لپاره چې په اوبو ورگډ شوم تردې چې کیشپ د سیند هغه بلې څنډې ته ورسید. لړم یې له شانه کښته او په وچه یې منډې پیل کړې زه هم ورپسې یم تردې چې د یوې گڼې ونې تر سیوري لاندې یو تنکی ځوان په خواږه خوب ویده دی ما له ځان سره فکر کاوه چې ښائی لړم ددغه ځوان د چیچلو لپاره دلته راغلی وي مگر چې گورم یو لوی زهرجن مار ډیر په بیړه د ویده ځوان دچیچلو په نیت د هغه خواته په منډه دی. مار لاد ځوان سرته نه وو را رسیدلی چې لړم په مار برید وکړ او د هغه په سر پسې ټینگ ونښت. تردې چې مار مړ سو او لړم بیرته د سیند غاړې ته ځان ورساوه. د هماغه کیشپ په شا سپور سو او خپل ټاکلې لورې ته یې یون پیل کړ. ما ددې اریانوونکې پیښې په لیدو سره دغه اشعار وویل:

یار اقدا والجلیل یحفظه
من کل سوء یکون في الظلم
کیف تنام العین عن ملك
تأتیه منك فواید النعم

زما د ږغ په اوریدو سر ځوان ویښ سو. ماورته ټوله کیسه تیره کړه. په هغه یې هم ډیره اغیزه وکړه او سمدلاسه له ټولو گناهونو لاس په سر سو او ټول ژوند یې په عبادت او سیاحت کې تیر کړ (تفسیر کبیر، تاریخ یافقي)

# د کوچنیانو پاڼه



## د ماشومانو دنده

شریف الله ( شرافت )
را لېږونه

ډیرو ګلالیو ماشومانو او د کندهار مجلې د کوچنیانو د پاڼې محترم لوستونکو او مینوالو د هرڅه دمخه اسلام علیکم :

په دې پاڼه کې زه غواړم چې ښکلو ماشومانو او تنکیو ځوانانو ته د ماشوم دنده او وظیفه وښیم .

هیله ده چې ستاسي د خوښۍ او ښې استفادې وړ وګرځي ، د ماشوم دنده او وظیفه په کورنې ژوند کې د مور او پلار او د کور د نورو هغه غړو چې پر دوی لویان دي ، خبره منل او د هغو په خوله کول دي او هغه ټول د ماشوم پواسطه پر هغه باندې د یوه کار د کولو حق لري او ماشوم باید د هغو په خوله وکي او کم کار چې یې ورته د کور د یوه غړي د خوا وسپارل سو ماشوم یې باید په ډیره چټکتیا او ځرکتیا سره تر سره کي ترڅو ورته د هغه غړي د خوا چې دغه کار یې ور سپارلی وو د افرین او شاباسي ږغ واوري او داسي ونکي چې هسي یې تر سر تیر کي او ووائی چې څه خلاص سو او په خپله د کوڅي د هلکانو سره په بازیو اخته او مشغول سي . د هغه کار د سمون او په ښه توګه د اجرا کولو په لټه کې نه وي نو کله چې یې بیا مشر ووینې او ورته ووائی چې احمده تا هغه کار کم چې ماته درته سپارلی وو سرته دي ورسوی او دی ووائی بلې هو هغه کار مې وختې لا خلاص کی زه داسي نه یم لکه محمود چې ټوله ورځ یې پرې ووهل او بیا هغه ورته ووائی چې احمده ته راځه چې تا څنګه داسي ژر او وختې خلاص کی هغه کار خو بیخې د ډیرو عمر ګار وو لکه چې تا په ښه توګه ندی اجرا کړی او هسي دې تر سر تیر کړی دی او بیا احمد او هغه مشر یې راسي او وګوري چې هغه کار هم داسي پر نیمائی پاته او حلال او مردار تر سره سوی وي نو ګلالیو ماشومانو تاسو فکر وکی چې د احمد مشر به څونه خفه او پریشانه سي او څونه به په غوسه سي او که یې دا اوله پلا وه او د مشر زړه باندې وسوځېدی نو به نصیحت ورته وکی او څه به ورته ونه وائی مګر که یې دا فعل ډیر تکرار کړی و او څوومه پلا یې وه نو بوه سي چې د احمد پر سر هم ټکه را شود سوه نو ښکلو او زړه ته را تیرو کوچنیانو تاسو باید تل په خپله در سپارل سوي وظیفه کې صادقه او رښتني وه اوسی او هغه کار وکی چې خپل مشران یې لارښوونه درته کوي که تاسي نن دغه په خپل سر اموخته سی : مشرانو په خوله ونه کی او هر کار په خپله خوښه وکی د مور پلار او بل مشر خبره په غوږ کې ونه نیسی نو بیا دغه اموخته کیږي او هغه به مو اوریدلي وي چې وائی

د نن ورځي کشران د سبا ورځي مشران یعني کله چې تاسي مشران سي او یو غټه وظیفه در وسپارل سي نو تاسي به د کوچنیوالي څخه لټ اموخته یاست او هغه غټه وظیفه به هم نیمګړې تر سره کوئ چې دا بیا ډیر غټ تاوان لري

---

### لنډه کیسه

نشاراحمد اریا له کوټي څخه

### ډیوی

عابدي ترور چې د ماسختن د لمانځه سلام وګرځاوه نود ګوتو په بندو یې تسبیح ویل شروع کړه ښه تر ډیره په همدې خای ناسته درودونه او دوعاوې یې وکړې شاوخوا یې کوپ کړې پاڅیده انګړ ته را ووته د کاله ټوله غړي په خواړه خوب ویده وه ځکه نو دې هم خان ځملاستو ته جوړ کړی خو چې څنګه یې ډډه ووهله نو په شنه اسمان کې یې خلانده ستورو خوږ خوب ځني یوړی او وه خپلې په زړه پورې نړۍ ته یې ددې پام ور واړوه . عابدي ترور هم په اسمان کې نه شمیرونکو ستورو ته دا ډول په ځیر کتل ته به واکم یو ورځني ورك دی هغه لټوي ستورو هم ځینو د شوخو ماشومانو په ځیر رڼ رڼ عابدي ترور ته کتل او خینو هم د شرمیدونکو ماشومانو په ځیر سترګکونه وهل د اوړي تود باد به په انګړ کې ورو ورو هاخوا دیخوا کیدی عابدي ترور لاتر اوسه د ستورو په زړه

پوري نړی کښني خپل ورك څه نه و مونډلی چې د کروندو سوړ باد په خپل غیږ کې د ګاونډي کور څخه د سندري دا ږغ راوړی او د عابدي ترور د خیالونو لړی یې ور دړي وړي کړه -

زیری راغلی د اغیارو لښکر مات سو
پر چمن مې د زاغانو ګذر مات سو
نور یې زما پر ګلزارونو سیوری نسته
د ابلیس د وزرونو شهپر مات سو
په شنه ډنډ کې سوي د زهرو اوبه وچې
د غماز لاس کې لویدلی

سندره لا نه وه پوره سوي چې ږغ بیرته تیټ سو او د ماشومانو د کړس کړس خندا ږغ له ګاونډي کوره را پورته سو عابدي ترور ته هم د خپل زړه دټوټي د سترګو تور لطیف ګل هغه کوچني راډیو وربه ده سوه چې د لطیف ګل به د طالبي څخه د رخصتیو په ورځو کې اوریده. عابدي ترور یو سوړ اسویلی وکښی او په داسي حال کي چې لاس یې پر ځمکه تکیه کړی و ولاړیده له ځانه سره ویل « زویه یو ځل دي خدای پاك (ج) په ژوندون را باندي ووینه چې د خپل زړه غوټه درته خلاصه کړم، هسي نه چې مړه سم او دا یو ارمان مي هم نیمګړی پاته سي » عابده ترور هغه کوټي ته ولاړه چې د سترګو د تور لطیف ګل هغه کوچنی راډیو پکښي پرته وه عابدي ترور چې راډیو راواخیسته نو پر هغه زړه بستره چې د کوټي په کونج کي پرته وه سترګي ولګیدي دا هغه بستره وه چې اوس د دوړو سرغنو خالی هم پري جوړي کړي وي د عابدي ترور سترګي په هغه بستره کې همداسي ښخي پاته سوي او هغه ورځ یې ور یاده سوه چې - دا په انګړ کي ناسته وه د لطیف ګل د واده لپاره پر څادر جوړ کړی ګلانو ته یې کتل او له ځانه سره یې ویل: دا چې اوس داسي ښکلي ښکاري نو په واده کې به څونه ښکلي ښکاري پدې کې د کاله دوړه کړپی سو، داسي ښکاریده لکه له چا سره چې لوېلنده وي او کاله ته را ننوځي عابده ترور ولاړه سوه د کاله د وره په لور ور رهی سوه، چې ګوري د لطیف ګل خپله د طالبي بستره په شا او غمجن یې وویل سلام علیکم موجاني '•

وعلیکم زویه خیر ولي داسي غمجن یې خدای مکړه ناجوړه خو به نه یې ؟

نه مورجاني ناجوړه نه یم، خوښه به دي په یاد وي چې تا انګړ جارو کاوه او ما په ډیره خوشحالي د کمونستي حکومت د ړنګیدو او افغانستان د خپلواکیدو زیری پر تا وکړی، موري هغه زیری دومره د خوشحالي ور نه وه لکه د نن خبره چې د ویر او غم ورړده.

ولي زویه! بیا خو به چا پر وطن حمله (یرغل) نه وي کړی.

نه مورجاني چا تیری نه دی پري کړی خو خپلو مو داسي سور اور بل کړی لکه تیری کونکو زویه خبره سپینه راته وکړه!

مورجاني نامتو قوماندانانو او په زړګو نو مجاهدینو د روسانو په وتلو سره د جهاد پای اعلان کړی اوټوله پخپلو کارونو او درسونو شروع وکړه خو د ټوپکیانو ناپایه جګړي زور. ظلم او زیاتي دي ته بیرته اړ کړه چې بیا ټوپك را واخلي او د افغانستان مسلمانان بي وزله افغانان د زور ظلم زیاتي څخه خلاص کړي افغانانو یونیم میلیون شهیدان ورکړل خپلواکي یې وګټله ددنیا لوی طاقت ته یې ماته ورکړه توپکیانو د یو نیم میلیون شهیدانو د وینو سپکاوی وکړ افغانان د نړی د اتلانو پر ځای په زیناکارو غلو باندي یاد سول پر افغانانو په خپل وطن کښي پر سر، مال او ناموس تیری وسو، او داسي نور مورجاني زه نور درڅخه څم ولي چې ملګري مي راته ولاړ دي دواوي (دعاوي) را پسي کوه

زویه خدای مو مل سه، خدای پاك دي ټولو مسلمانانو ته بری ورکړي عابده ترور لا هغسي په هغه زړه د دوړو ډکه بستره کښي سترګي ښخي کړي وي، چې د لطیف ګل د ماما غاړي تازه کولو ږغ یې تر غوږو سو دي ږغ یې پام ځان ته وراړوه چې انګړ ته را ووته او د ختیځ د غرونو څوکو ته یې وکتل سپیده داغ چاودلي وو. عابدي ترور د لطیف ګل وه ماما ته د اوداسه اوبه ورتیارولي چې په کوڅه کښي یې یو ږوږ تر غوږ سو ږوږ ګرندی ګرندی ددوی لوري ته را نږدي کیدی چې د کاله ور یې وټکیدی د عابدي ترور زړه درزا شروع کړه او د لطیف ګل د خبر اوریدو ته غوږ سوه د لطیف ګل ماما چې ور پرانیست نو د کاله له وره څخه څو ګامه وړاندي څو زلمیان چې توري پګړی یې تر سر تاو کړي وي ولاړ وه، تر ستړي مسي وروسته یو ځوان وویل:

کاکا جانه د هرات د فتح زیری مو درته راوړی مبارك دي سه:

بچیانو ستاسو دي هم مبارك سي خدای دي نور بری درکړي دا راته ووایاست چې د لطیف ګل موځه حال راته راوړی دی؟

ددي پوښتني سره د عابدي ترور د زړه درزا یو په دوه سوه او د هغه ځوان جواب ته څیر سوه چې په سترګو کي یې د اوښکو خلا له ورایه ښکاریده.

کاکاجانه دا خو د لطیف ګل د سر او وینو قرباني وه چې....

ځوان لاخبره نه وه پوره کړي چې د عابدي ترور له خولي نه یوه سوي چیغه پورته سوه او پر ځمکه را ولویده.



# د کوچيانو د ژوند په هکله

نويد احمد (احدي)

کوچيان زموږ د هيواد په زړه پوري وګړي دي چې زموږ په هيواد کې دوه ميلونه ۲۰۰۰۰۰۰ کوچيان ژوند کوي

د کوچيانو ژوند ډير ساده او کوچيان تل په کږديو کې ژوند کوي او يو ټاکلی کور يا ځای نلري او نه هم مځکه يا پټی لري ددوی ټوله ژوند له ښارونو سره وي او همدغه ښارونو په واسطه سره خپل ژوند سرته رسوي

کوچيان پسونه ، بزې ، اوښان ، او خره روزي چې د ميږو او بزو څخه شيدې لاسته راوړي او بيا د شيدو څخه مستې ، شلومبې ، کوچې ، غوړي ، پنير ، کورت او داسې نور شيان جوړوي او د اوښانو او خرو څخه د بارونو په وړلو کې ګټه اخلي ځکه چې اوښان ډير بار وړلای سي کوچيان ډير تکړه او کاريګر خلک دي ددوی نر اوښځې واړه او زاړه ټوله کار کوي او ټول په يوه کار اخته وي د کوچيانو نارينه او کوچنيان رمې څروي ، پسونه سکولوي ، او پر اوښانو بارونه باروي او د کوچيانو ښځې د کور کارونه کوي لکه ډوډۍ پخوي ، پخلي کوي ، ميږې او بزې لوشي کورت جوړوي او داسې نور

کوچيان د کال په اوږدو کې دوه سفرونه کوي په منې او ژمي کې کله چې هوا يخه شي نو دوی د خپلو ښارونو سره ريګ ته خيژي ځکه چې په ريګ کې لږ څه هوا ګرمه وي او له بلې خوا د ښارونو لپاره وانبه هم پکښې پيدا کيږي او بيا کله چې پسرلی او اوړي سي نو دوی بيرته له تودې سيمې څخه و معتدلې سيمې ته ځي يعنې له لوړو سيموڅخه کښته راځي کوچيان کله چې له ريګ څخه راکښته کيږي نو دوی غوړي په منګيو کښې اچوي او په ريګو کښې يې ښخوي او بيا کله چې بل کال بيرته را وګرځي نو هغه خپل غوړي را اخلي او استفادې څني کوي کوچيان ډير اعلی فکرونه لري کله چې ددوی يو اوښ ورک شي او په کلو کلو څني ورک وي نو دوی بيرته د څو کلو وروسته د پل د پيژندلو پواسطه پيدا کولای سي او که چيري يوه اوښه کومه چې ددوی څخه ورکه وي د هغې بچې زيږيدلی وي نو که چيري دوی د هغې اوښې بچې ووينې نو وايې چې دا زما د اوښې بچې دی کوچيان ډير ژر کالي نه اغوندي او ډير ساده ژوند کوي کوچيان خپل ټول عمر په کږديو کې تيروي ځکه چې دوی په کال کې دوه واره سفر کوي نو ددوی لپاره د کږديو درول او وارنول ډير اسانه کاروي او د کږديو ورل او را ورل د يوځايه څخه بل ځای ته هم اسان وي کوچيان خپل ټول شيان د ښارونو په مقابل کې رانيسي کوچيانو ته خپل ښاروي ډير ګران وي ځکه چې کوچيان پرته له ښارونو څخه بل څه نلري يعنې نه باغ او نه پټي او نه دوکان کوچيان ډير تکړه خلک دي او د کال په اوږدو کې کله چې له يوه ځايه بل ځای ته ځي په سلګونو کيلو ميتره لاز وهي او هيڅ ستړيا نه حس کوي کوچيان په خپلو منځو کې مخصوص رسم رواج لري يعنې د واده په مراسمو کې د ښځې د مهر په مقابل کې د پيسو پر ځای اوښان يا ميږې سره ورکوي

کوچيان ډير ميلمه پاله دي او د خپل ميلمه ډير عزت کوي لکه څرنګه چې په پخوا کې يو ښکاري يو هوسۍ وويشتله نو هوسۍ ولاړه د يو کوچي کيږدۍ ته نوښکاري د هوسۍ غوښتنه د کوچي څخه وکړه نو کوچي ورته وويل چې زه هيڅ وخت دا کار نسم کولای چې هوسۍ دې تاته وسپارم ځکه چې دې هوسۍ زما و کيږدۍ ته پناه راوړي ده نو ددې خايه څخه معلوميږي چې کوچيان ډير ميلمه پاله وګړي دي او د کوچيانو زيات شمير خلک بيسواده دي ځکه چې دوی په يوه سيمه کې ندي پاته سوي ترڅو له علم څخه برخمن سي زياتره کوچيان چې ناروغه سي نو په زيات وخت سره بيرته رغيږي ځکه چې دوی و ډاکټر ته عقيده نلري او ډير تمدني ژوند تيروي

# خپله ځیرکتیا و ازمایست

ترتیب کوونکی : عبدالحمید ( ترابي ) د زرغوني انا افغان ترک ښوونځی د ۷ ج ټولګی څخه

۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵



۱ ۲ ۳ ۴ ۵ ۶ ۷ ۸ ۹ ۱۰ ۱۱ ۱۲ ۱۳ ۱۴ ۱۵

عمودي

۱ - د افغانستان یو پیاوړی عالم او د پښتو ژبې لومړی شاعر

۲ - د شیانو ایښودلو لپاره په خونه کې جوړیږي ، قهرمان ، د افغانستان یو ولایت

۳ - زاغ بې سره ، ملګری ، یوه خوږه میوه ، کوڼ ، په دري ژبه ( سرچپه )

۴ - په یوه ژبه بلې ته ویل کیږي ، چې نوي وچ کالي راځي ، فاصله په تیت پرک ډول .

۵ - په تیاره پسې ده ، واړه شیان موږ ته را ښیي ، خپل عمل د لاري مل .

۶ - سرچپه یو عدد دی ، ښکنځل په دري ژبه ، د ټکولو په وخت کې د خولې څخه وزي ، د پښیمانۍ په وخت کې ویل کیږي .

۷ - سرچپه یوه ولسوالي ده ، د مرکزي ولایت یوه ولسوالي ده .

۸ - پر رودو او ویالو جوړیږي ، مشهور غرونه‌دي ، ( نوبت ) د پخیدو وسیله ده ، په دري ژبه کې ورته بودم وایي .

۹ - قبول سوي ، خوابدی ( سرچپه )

۱۰ - په دري ژبه کې د ژوند یوه اهمه ماده ده ( سرچپه ) یو ډول د دوبي میوه ده ( سرچپه ) یو ډول الوتونکي دي ، د یوه ختیځ اسیائي هیواد د پولي واحد دی .

۱۱ - د الله (ج) استازي - که (ح) وای هله به یې زړونه روښانه کړي وای ، یو وحشي حیوان

۱۲ - بند ، د هندوستان په شمال کې ډیر ښکلی ښار دی ، د شپې لمن یې ټوله کړه

۱۳ - په یوه لهجه یو توری دی ، پیري ( سرچپه ) د الوتونکو لاس ته را وړنه ده یو ارتباطي توری دی

۱۴ - اوبه ورڅخه تر لاسه کیږي ، د نیکه ماندینه ، هرایي جهاز یې نړیواله پیژندنه لري .

۱۵ - په چین کې نړیوال شهرت لري په تیت پرک ډول ، د کال په لمړیو کې یې هرڅوک میلې ته ورځي .

افقي :

۱ - د غربي ولایاتو یوه ولسوالي ، د افغانستان یو مشهور عالم

۲ - د اسیا د زړه پولي واحد ، لوی احمدشاه بابا په هغه یادیږي

۳ - د یوې ولسوالی نوم دی په چپه کې د یوې حشري یا خزندي نوم دی

۴ - د افغانستان لمړی پاچا ، د دري یو عدد دی ، لنده بل ، پیغمبر له هغه څخه معصوم دی

۵ - قهرمان ، والدین ، د صلحې ضد

۶ - په انګلیسي ژبه کتاب ته وایي ، د خلاصیدو مهمه اله ، توان ، یو ډول خوندور خواړه

۷ - د کډو یو خوند ور ډول دی ، یو پیژندل سوی ستوری .

۸ - د باغ انځورګر ، د هیواد یو په زړه پوري ورځپانه

۹ - یوه لوبه ، د اوبو د زیرمي لوښی

۱۰ - یو عدد په دري، یو عدد په انګلیسي ( سرچپه ) ، ترویش یې ------ خوښ دی ، فکر ، چې خوږ سي استعمالیږي

۱۱ - یوه په زړه پوري لوبه ، کرار ، د بدن یو غړی .

۱۲ - په اردو ژبه کښېني ورته ورځ وایي ( سرچپه ) لوند په دري ژبه ، د جوس څخه په لاس راځي ، په دري کې هستم

۱۳ - یو منفي توری ، لس ( ۱۰ ) پاوه ( سرچپه ) کور په انګلیسي ژبه ، بلې د پښتو په لهجه ، په دري کې ورته حرص وایي

۱۴ - یو د لیدلو وړ لوبه دولایتونو امیران په تیت او پرک ډول

۱۵ - یو ډول انګلیسي باینسکل دی ، د افغانستان یو لرغونی ولایت

# ځیرکتیا و ازمایاست

میوند کندهاري

## کیسې (معماوي)

۱ - لاس وپښې یې دي تړلي هم په غاړه یې زیندی ده سر یې پرې زړه یې ختلی ماښام مړه سهار ژوندی ده ؟

۲ - یو شی دي چې هرڅه یې کشوي په هغه اندازه لنډیږي څه شي دی ؟

۳ - سره ګرځي سر ګردانه ، هر طرفته روي ګردانه . یوې بلې خواته ګوري ، نه خسته ده نه ستومانه ؟

۵ - یو شي دی چې هر څه یې پیچې اوږدیږي ؟

۵ - یو شي دی په ورځ کې ګرځي ماښام راسي وخپل کور ته تکیه پر لکې وکړي او د شا پښه کړي پورته ؟

۶ - و مخ و شاته کیږي تور وینبتان باندي را شنه دي تر خوله سپین زګاڼ را باسي کلیوال یې میلمانه دي ؟

۷ - په غار ننوتلی پکښې ګرځي دوري دوري تر بل غار یې سر راوزي یوه اوږده لکۍ په پوري څه شي دی ؟



# د سپورټ په هلکه څو ټکي

په ژوندانه کې دانسان لپاره د سپورټ کول یو ضروري جز دی چې هر ځوان باید په صحي معنی سره استفادي ځني وکړي سپورټ کول ځوانانو له ډیرو بدو لارو او نشو څخه ژغوري سپورټ د اخلاقو لپاره یو مهم مضمون دی چې باید عملي سي انسان د بد اخلاقیو څخه ژغوري او سپورټ د صحت ضامن دی او انسان ته تندرستي ور په برخه کوي .

۱ - سپورټ وکړی ! ترڅو مو بدن تکړه او د عبادت دپاره چمتو وي

۲ - سپورټ وکړی ! ترڅو مو د بدن ټوله غړي سالم وي

۳ - سپورټ وکړی ! ترڅو مو بدن د ژوند تر اخري لحظي پوري ستاسي سره پوره ملګرتیا وکړي

۴ - سپورټ وکړی ! ترڅو مو اعصاب سالم او د زده کړي لپاره چمتو وي

۵ - سپورټ وکړی ! ترڅو د کفارو او مشرکینو په مقابل کې دوامداره مبارزه وکولای سي .

۶ - سپورټ وکړی ! ترڅو د ژوند ټولي چاري په ښه توګه سره سرته ورسوی .

۷ - سپورټ وکړی ! ترڅو مو د بدن د ويني جريان په چټکي سره سرته ورسیږي .

۸ - سپورټ وکړی ! ترڅو په بدن کې په ښه توګه سره غذا هضم سي

۹ - سپورټ وکړی ! ترڅو مو د تنفس جهاز قوي او په ښه توګه سره تنفس وکولای سي .

۱۰ - سپورټ وکړی ! ترڅو له نشو څخه ځان وژغوری .

۱۱ - سپورټ وکړی ! ترڅو مو په اجتماع کې د ادب نقطه اوچته سي

۱۳ - سپورټ وکړی ! ترڅو د مرګ تر ساعته تکړه او تندرسته یاست

د نویداحمد احدي رالیږنه

له هغه وژړل
څخه تاریخي لنډه
افسانه

# د یو حقیقت یادونه

د سخت باران په شیبو شیبو کې جرنیل (سیل) (۱) او (داویس) د ۱۳ م او ۳۵ م رجمینټ سره د توپونو په مخ کې روان وو د لیري څخه د اسمایي غره او (قهرمان بالاحصار) زاړه او قوي دیوالونه ښکاره کیدل. (رابرت سیل) به کله شاته وکتل او د کابل د عمومي منظرې د لیدو نه یې یو سوړ اسیویلی ویست او بیا به یې په غمجن اواز (د اویس) (ینګ هیزبند) او (لفتننت مین) ته وویل دې غرونو او ګرنګونو سره سرجنګول لیونتوب او بې عقلي ده، حماقت او ناپوهی ده، دلته د هرې ګټې او هر کاڼي لاندې مرګ ویده دی دې خاوره کې د انګریزي پوځ لپاره په هر ګوټ کې نیستي پرته ده. (داویس DAVIS) او نورو چې د جنریل (سیل) خبرو ته غوږ ایښې وو د لږ سکوت نه وروسته یې زیاته کړه، ددې کام هر فرد او بچی ... موږ ته ددې مرګ او نیستي مثال دی، دې لوړو غرونو او اوچتو څوکو کې، بې باکه، جانبازه، فدا کاره قهرمانان پراته دي... دلته ...، په دې وخت کې (لفتنفت مین MAIN) په قهقهه وخندل او بیا یې په ډیر تمسخر وویل. لیکن زه خپله بیله عقیده او بېل خیال لرم، زه وایم چې دامرګ اودا نیستي دا قهرمانان او دا سرفرو شان باید د زور، قدرت، ظلم فشار، بې رحمتی، بې عدالتی، سنګدلی او تشدد په واسطه مغلوب او منکوب کړای سي، زه دغه وایم زما دغه عقیده ده، که هر څه کیږي په دې خلګو به زور او جبر کیدای سي او بس څکه چې ...))

دلته (ینګ هیزبند Young hasband) په داسي حال کې چې افق ته کتل په یودروند، غمجن او کرار اواز وویل د کوم شي او کوم فکر چې په دې خاوره کې زه د هغه سخت مخالف یم او زموږ د لښکرو اکثریت زما ددغه فکر طرفداره او ملګري دي هغه همدا د کپتان (مین) عقیده او تصور دي، د کومې ورځي نه چې زه د افغان وطن کې شپې ورځي سبا کوم او د کوم تاریخ څخه چې ما ددې خلکو په روحیاتو، عنعناتو، کلتور او ثقافت، ملي سجایاو او روح کې ژوره مطالعه کړیده، دا حقیقت راته په ډیر ښه شان او واضح ډول څرګند سویدی چې کومه مفکوره او عمل چې په دې ملك او دغه خلکو کې په وړاندې نسي تللای او د کامیابۍ او موفقیت بوی قدر، هم تري دماغ ته نسي رسیدای همدغه د زور او ظلم، فشار او تشدد تګې دي ...،

زه وایم که دې کام سره په دوستي، مدارا ښه سلوك، متقابل احترام او هغو ته په ټیټ نظر نه کتل د هغو د ملي غرور، افتخاراتو او کامولی عزت کولو رفتار وسي، نو د مرګ او نیستی خطر څه چې د یوې ډیري وړوکي خلاف حرکت نښه هم په هغو کې نسي لیدل کیدای ... درندو توپو پر مخکه عجیب شاني اواز کاوه، د اسونو شنهار او لغتو ډوړې او ګردونه اسمان ته پورته کول ... د پوځ مشران په خبرو خبرو ښتخاك او خورد کابل ته نژدي سول ... د خورد کابل شاوخوا غرونه او غونډۍ د یوې وېډې هیولا په شان ښکاري

پوځي مشرانو کې د عقیدې د اختلاف مزي ډیر ټینګ او مزبوت مختلفو عقیدو او مفکورو خاوندانو مختلف فکرونه او جاجونه وهل خو په دې منځ کې (لفتننت اوکس OKES) کله کله شاو خوا غونډیو ته کتل او په زړه کې یې نامعلومه او پټه شاني ویره پرته وه. هغه ته خپل روح، خپل زړه خپل احساس، خپل ضمیر او وجدان په مغزو کې د خطر او نیستی ګړیال وهلی وو. یوازې هغه درنګ ساعت لا د مرګ ژوبلې انتظار درلود، رابرت سیل د خپلې پنځوس کلنې میرمنې (۲) او ګرانې لور (۳) په فکر کې وو... هغه په دې فکر کې وو چې دده نیاز بینه او وفاداره ښځه او ښائسته لور به اخر ددغه لوړو ژورو، دغه لوړو او تندو، دغه خواریو او مشقتونو سره څه وکړي زه په دې خوشحاله وم چې هغه زموږ د بیرته وتلو پوري یعني تر هغه چې د افغاني خاوري نه بیرته هندوستان ته ولاړ سو د پښتنو په منځ کې وي څکه هغوی د ښځي ډیر احترام کوي او یوازې هلته ده اسوده حالی نه مطمئن کیدی سوم.

په خیال او تصور کې چې به هغه د

پاته په ۸۴ مخ کې


د کندهار ښار احمدشاهي دروازه

یادونه : د کندهار ښاروال مولوی دین محمد حقبین د کندهار ښاریانو پوښتنو ته ځوابونه وائی

# د کندهار ښاریان څه غواړي ؟

پوښتنه : په ښارکې چې اوس هرڅه ابادي او خسې کيږي که څه هم نقشه ښاروالي ورکوي خو بيا هم د ماستر پلان خلاف وي مثلاً که په ماستر پلان کې يو ځای د مارکيټ ، روغتون ، ښوونځی يا . . . دپاره ټاکل سوي وي ښاروالي پر هغه ځای د کور نقشه ورکوي يا د کور پرځای مارکيټ جوړيږي ايا دا د ماستر پلان څخه تيری نه دی او دا ډول کارونه د ماستر پلان او د ښار و نقشي ته تاوان نه رسوي ؟

ځواب : د ښاروالی رياست د هر ځای نقشه چې ورکوي او يا د جوړيدلو اجازه چاته ورکوي د ماستر پلان مطابق وي او د هغه خلاف چاته امر نه ورکوي .

کوم مارکيټونه ـ دولتي تعميرونه يا شخصي چې جوړي سوي دي يا د جوړيدو په حال کې دي ټول د ماستر پلان مطابق جوړيږي ، البته د رياست پما په مشوره . که چيري د ماستر پلان خلاف کار وشي ، واضح خبره ده چې د ښار نقشي ته تاوان رسوي .

پوښتنه : تاسو يوازي د ملکي خلکو څخه غواړي چې ماستر پلان مراعت کړي خو ـسي امارتي دواير نه مکلفوی چې خپل كارونه د ماستر پلان مطابق وكړي . مثلا د امنيي قوماندانی چې ديوال يې رنګ کړی خو بيرته يې پر خپل پخوانی ځای پورته کړی ـ د والي په کوټي کې ابادی د سړک پر غاړه وسوي نو ايا ماستر پلان يوازي بايد شخصي خلك مراعت كړي او امارتي دواير بايد ټول تعميرنه پر خپل سر جوړ کړي ، تاسو و دې ته متوجه ياست ، که ياست نو کوم مشکل مو مخنوی کوي ؟

ځواب : د ماستر پلان تطبيق پر دولتي او يا شخصي ځايونو هيڅ کوم توپير نلري او قابل د تطبيق دی دا چې په ځينو دولتي ځاينو کې په تخريب سوي ځای بيرته په قبلي ( مخكني ) شکل جوړيږي دا مانا نلري چې ماستر پلان نه تطبيقيږي لکه چې تاسو ته بهتره معلومه ده چې ۲۲ کلني جګړي زموږ د دولت اقتصاد ډير ضعيف کړی او د بلي خوا دولتي ځايونو ته بل ځای ورکول په اوسنيو شرايطو کې امکان نلري . د ډير مصرف د مخنيوي پخاطر استفاده ځني کوي . چې د ماستر پلان عملا تطبيق په وخت کې يې حتما تخريبوي او کوم شخصي ځايونه چې هيوادوال يې جوړوي ددې لپاره چې د تل دپاره پاته وي او په راتلونکي کې هم و نه نړول شي . او هيواد وال مو متضرر نه شي څکه د ماستر پلان مطابق هدايت ورکول کيږي

پوښتنه : د لوی ويالې په سيمه کې ښاري ماستر پلان تر پښو لاندي سوي دی او لا لاندي کيږي کوم پارکونه يا عام المنفعه تاسيسات چې په نقشه کې نيول سوي وه اوس هلته خلګو كورونه جوړ کړي دي ايا دا به د ښار پراختيا متضرره نه کړي ؟ يا که تاسو د پخواني ماستر پلان ترڅنګ د نوی ښار جوړولو دپاره په کوم دښت او پراخه سيمه کې کوم پلان په نظر کې لری ؟ که په دې اړه واضاحت وکړی مهرباني به مو وي ؟

ځواب : د لوی ويالي په سيمه کې واقعا زموږ هيوادوال عام المنفعه او دولتي تاسيساتو ځايونه اشغال کړي دي يا يې کورونه اعمار کړي او يا تصميم لري چې جوړ يې کړي چې اکثرا د رباني د حکومت زور مندان او ځيني د مجبوريت له کبله په دغه غير قانوني عمل لاس پوري کړی چې د ضرورت په وخت ( د ماستر پلان د عملي کيدو ) په وخت د تخريب امکان يې موجود دی چې دوی ته مکرر خبر ورکول سويدی او هيله مند يو چې په اينده کې هم دوی په دغه اقدام لاس پوري نکړي .

پوښتنه : ايا تاسو د کوم محفوظ بدرفت د سيستم رامنځ ته کول په نظر کې لری . ترڅو

کوڅي او سړکونه د بارانو په وخت کې د ناپاکو اوبو د بهيدو څخه خوندي سي . او په کوڅو کې تګ او راتګ اسانه سي ؟

ځواب : د ښاروالۍ رياست ترڅپل وسه پوري کوښښ کړيدی چې د ښار موجوده بدرفت سيستم په اساسي شکل احيا او ترميم کړي لکه د سړك دوه طرفه کانګريټي کول او د وطني بيت الخلاو ترميم په اساسي شکل سره (لکه د دروازو نصبول) چې پورته کارونه اکثرا د خارجي موسساتو په مرسته صورت نيولی دی دا په دې خاطر چې د کندهار ښار په مجموع کې يو اساسي بدرفت سيستم نه لري ترڅو د هغې لاري ټولي خرابي اوبه سره جمع او دښار څخه ووزي خو اوس متأسفانه اکثرا زموږ وطنوال ليدل کيږي چې په ملکيت ځايونو کې غير صحي اوبه په غير فني ډول د بدرفت څاګانو کمود څاګان جوړوي چې دا ډول څاګان په ډير لږ وخت کې خپل شاوخوا محيط او د ځمکي لاندي اوبه چټلي کوي په داسي حال کې چې موږ ټول ودي اوبو ته اشد ضرورت لرو چې مختلفو شکلونو لکه عادي څاه لاسي بمبي او نورو شکلونو ددي اوبو څخه استفاده کيږي .

زموږ هيله دا ده چې جداً ددې ډول بدرفت څاګانو د جوړولو څخه وطنوال ډډه وکړي .

پوښتنه : په ښار کې چې هرڅه مارکيټونه جوړيږي هغه تر معيار کښته وي . دکانونه يې کوچني وي ؟ چې د تجارت په پرمختګ کې څنګه واقع کيږي تاسو په دې هکله کله هم فکر کړی دی چې دا و تجارت ته څوني تاوان رسوي او هيڅوك هم اوس په کوچني دکانونو کې سم کارو بار نسي کولای او يو مارکيټ جوړونکی د خپلي شخصي ګټي په خاطر ډير خلګ لوټه وي ؟

ځواب : په ښار کې چې شخصي مارکيټونه جوړيږي د دوکانو کوچني او يا غټي جوړول يې د مالکينو نظر پوري اړه لري . کوم دولتي مارکيټونه چې جوړ شويدي ددې لپاره دي چې صرف د کانداري پکښي صورت ونيسي د يو دوکان د ضرورت په اندازي اجناس پکښي و پرودل سي نه دا چې د ګدام استفاده څني وسي .

پوښتنه : د ښار نفوس ورځ په ورځ زياتيږي او کورونه ډير کم دي چې اوس هم تقريبا په يوه حويلي کې دري څلور فاميله ژوند کوي ايا دنويو کورونو د جوړولو دپاره کوم پروګرام په نظر کې لری . که يې لری نو کله به انشاالله د عمل په ډګر کې پلي شي ؟

ځواب : د ښار د نفوس د ډير ښت او نويو کورونو جوړول په منظور د فعلا لپاره د البيروني وبالي شمال طرفته يعني د لوې ويالي د کوتل مرچې خواته يوه پروژه سته چې نمري پکښي توزيع کيږي او بله پروژه په کوهکران کې د ميان کوه په سيمه کې او په نظر کې سته چې نورو سيمو کې هم دا پروسه عملي شي .

پوښتنه : په ښار کې چې کوم غير صحي مشروبات لکه کا کولا ، فانټا او نور ډول ډول شربتونه او خواره جوړيږي ددې د مخنيوي او برسی دپاره موڅه په عمل کې کړي دي ؟

ځواب : د مشروباتو په باره کې لکه څرنګه چې په کندهار ښار کې پنځه کارخاني د فانټا او کوکا کولا کارخاني فعاليت کوي چې د صحت عامي د تصديق وروسته چې د موادو د درستوالي او صحي والي په باره کې ورکوي موږ د فعاليت اجازه ورکوو او د ښه کنټرول په خاطر د ښاروالي له خوا هري کارخاني ته يو نفر توظيف شويدي چې روز مره ددوی کار او فعاليت تعقيبوي او په دې ډول ښار ته په صحي ډول مشروبات عرضه کوي .

پوښتنه : د کندهار ښار د ښکلا او تزيئن دپاره کوم څه په نظر کې لری ؟

ځواب : د کندهار ښار د ښکلا لپاره موږ د نوی ښار په سيمه کې نهالان ايښي دي د عيدګاه جادي چمنان او ګلانو څخه همواره مراقبت شويدی او په اينده کې هم په عصري سيستم په نظر کې سته خو متاسفانه چې برسيره پر هغه چې وطنوالو څخه په وار وار تقاضاوي سويدی ددغسي ځايو د ساتني او تحفظ په منظور همکاري نه کوي بلکه په له منځه وړلو کې تلاش لري د مثال په توګه د عيدګاه جادي چمنان چې وطنوال هندواني ختکي او نور خوراکه مواد هلته خرڅوي چې د ګلانو د ماتيدو د چمن د خرابوالي او د تفريحګاه د ځای بندولو باعث ګرځي چې په وارو وارو ممانعت صورت نيولی دی خو بيا هم نور تعداد د هغه ځای ونيسي او د تخريب باعث ګرځي .

پوښتنه دکندهار ښاريان چې په دا شلو کلونو کې لاپروا وه او هم هغسي يې د عادت ونيوی د ښار په تنظيف او پاکي باندي د خلګو د مکلفولو دپاره او په هغوی د ښار نظافت د تنظيمولو دپاره کوم پلان لری چې د تعذيراتو له لاري دوي په ښاري نظافت باندي مکلف سي دا به يو ډير لوی خدمت وي که مو چيري داسي وکړه . تاسي په دې اړه څه وايا ست ؟

ځواب د ښار د حفظ الصحي په خاطر د خلکو په همکاري هغه ځايونه چې دلته په ښار کې تخريب سوي وو توانيدلي يو چې د چوڼي سړك د دواړو غاړو بغلونه کابل بازار شاه بازار او نورو نواحيو کې د دوکانو مخان اسفالت او يا لښتيان د موسسو او خاصتا د هبيتات موسسي په همکاري پاخه کړو چې د امکان په صورت دا پروسه به دوام ومومي .

پوښتنه د ښار د ښه اداري او د ښاروالي د کارونو د انسجام او د خلکو د مشکلاتو د حل په مورد کې که د ښار د ناحيو شميره تر شپږو زياتي سي يا تي پنځم

او شپږمه ناحیه چې ډیرې پراخې دي پر دوو دوو ناحیو وویشل سي دا به ښه نه وي چې له دغه لارې د خلکو مشکلات حل کړه سي تاسو په دې اړه څه نظر لرئ ؟

ځواب : دناحیو د زیاتوالي په منظور چې د وطنوالو مشکل په حل کیږي موږ هم د دوو ناحیو په اضافه کولو په پنځمه او شپږمه ناحیه کې موافق یو

پوښتنه : دښار په هوټلونو کې مضر صحت خواړه و مسافرینو ته ورکول کیږي دشپې تیرولو کرایه او د خوړو بیه هم زیاته اخستل کیږي تاسو ددې پلټنه کړې ده چې ددغسې بې انصافیو مخ نیوی وکړي ؟

ځواب : نه پوهیږو چې د مضر خواړه څخه مقصد څه دي ؟! که چیرې د صفائي نه مراعات کول وي دا کار ښاروالي کړیدی په مختلفو وقتو حتی د شپې هم تفتیش صورت نیولی چې په عدم مراعات سره نی هوټلونه بندسوي او په اکثرو غټو هوټلو کې یخچالونه ایښودل سوي چې د غذا د خرابیدو څخه مخنیوی شوي وي او مسافرخانو او هوټلونو ته نرخنامې ورکول سویدي تخلفینو ته لازمه جزا ورکول شوي او که چیرې بیا هم زموږ وطنوال د داسې مشکل او بې انصافه هوټلیانو سره مخامخ کیږي هیله مند یو چې د ښاروالی سره په تماس کې شي چې جلوګیري ئې وشي

پوښتنه : د ښار ټوله بدرفت په پاکو جاري اوبو ګډیږي چې له دغه اوبو څخه خلک د ځښنك او پاکۍ دپاره استفاده کوي چې دمذهبي او صحي لحاظه سخت توان لري نو تاسې پدې اړه و خلکو ته څه هدایت کړي دي که نه دی نو تاسو پخپله ددې د مخنیوي لپاره څه په عمل کې کړي دي ؟

ځواب : د لبنتیانو د پخولو په رابطه د هیئات موسسي په همکاري په اوله دوهمه ، دریمه ، څلورمه ناحیوکې عملا کار صورت نیولی دی موږ په نظر کې لرو چې د امکان په صورت کې د ښار ټول لبنتیان پاخه سي او د اړوندو مؤسیسو سره په تماس کې یو چې دا مشکل و خلکو ته حل کړو چې په ضمن کې د وطنوالو څخه هم هیله منديو چې پدې رابطه زموږ سره لاس په لاس ددې مشکل د منځه ورلو دپاره همکاري وکړي

پوښتنه : د لوی ویالي په ساحه کې پر ویشل سوي نمرو باندي ولې تعمیري کار بند کړه سوی دی ؟

ځواب : د لوی ویالي په سیمه کې پر ویشل سوي نمرو باندي د تعمیر بنډلو په ارتباط باید ووایو چې اکثره پارکونو ، پارکنګونو ، دولتي تاسیسات او ځینې وطنوال چې شلو کلونو څخه په مهاجرت مجبوره سویدی او ددوی نمرې د نورو له خوا اشغال سویدي د ځینو خلکو له خوا اشغال سوي دي او تعمیرنه یې پر جوړ کړي او یا غواړي چې جوړ یې کړي چې ښاروالي او اړوندو ارګانونه ددوی د دعاوي څخه په تکلیف دي ددې لپاره چې اینده کې زموږ وطنوال هر یو پخپل ملکیت باندي حاکم وي او حق تلفي رامنځ ته نه وي سوي اعمار یې معطل وو او هغه اشخاص چې د ملکیت سند په لاس کې لري د ښاروالی ریاست کم ممانعت نه کوي .

پوښتنه : په بازار کې لیږي والاوو او ګاډي والاوو ته اجازه نه ورکول کیږي چې خپل عیال ته حلاله روزي پیدا کړي او هره ورځ د ښاروالی لخوا وهل کیږي ټکول کیږي او نه پریښودل کیږي چې دوي دسړك پر غاړه کار وکړي او حال دا چې پر هغه ځای و موټرانو ته بیا اجازه ورکول کیږي چې و دریږي ستاسو په نظر دا څنګه کار دی ؟

ځواب : لیږي والاوو ته په نوي سړك باندي ( اوله ناحیه کې ) ځای مشخص شویدی ولایتي شورا هدایت په اساس د قوماندانی ، ترافیك ، ښاري انظباط او ښاروالي ګډ موظفین د سړکونو تخلیه باید وکړي ځکه دا کار صورت نیسي چې د بازار ترافیکي معضلات را منځ ته شي او په بازار کې د چټلی او کثافت مخه ونیول شي خو وطنوال چې په دغه دنده اخته دي قناعت نکوي او سړکان بندوي او د موټرانو اجازه هم چاته نه ده ورکړل سوي چې ددې کم عرضو سړکانو په اطرافو توقف وکړي دوی پخپله باید دا انصاف وکړي چې د نورو ښاریانو د تکلیف باعث ونه ګرځي . او هم دا موضوع په ترافیك پوري اړه لري که چیرې هر وطنوال پخپله دغو ټکو ته توجه واړوي موږ ډاډمن یو چې دا مشکلات ټوله به حل وي او دوی ته به د سوال موضوع پاته نشي په پای کې باید ووایو چې که هر یو خپل ځان اصلاح کړي حتما په جامعه کې اصلاحات راځي .

## پاته د یو حقیقت ...

خپلې ښځې ، لور او نورو میرمنو سره د پښتنو نر ښځو نیك سلوك ، شرافت او انسانیت او صمیمیت لیدی نو اوښکې به یې سترګو ته راغلې او بې اختیاره به یې سوړ اسویلي له خولې ویست ... هوا خړه پړه وه ، ساعت ګړی لاد باران اورېدو احتمال وو شیبې د زور نه لوېدلې وي دلته وو چې د تاریخ یوه غټه او مهمه پاڼه ولیکل سوه ... دشاو خوا غرو او غونډیو نه توري لرې راکښته سوي پښتنو غازیانو دا تنګه دره ددښمن د پوځونو له پاره د جوړ قبر او لحد مثال ګڼلی وو ، ناتار جوړ سو او لاباران نه وو درېدلی چې هغه پای ته ورسېد ...

د انګریزي پوځونو نه بېشمېره مړه او زخمیان سول ، د پوځي افسرانو کپتان هیزبند زخمي سو د غاوره او مغروره ( لفتنفت مین ) د سرکوپړي والو ته هغه ځوك چې د افغانانو سره د زور ظلم ، او قوت نه په کار اخیستلو طرفدار وو او لفتننت اوکس په زخمي سرځان خلاص کړي ... د جنرال رابرت سیل د ښځې هډوکي هم مردکي والوزاوه ... دا پېښه په تاریخ کې د ۱۸۴۱ عیسوي کال د اکتوبر په ۱۲ مه نېټه سوې او ذکر سوی ده

---

( ۱ ) د رابرت سیل د پوره پیژندنې دپاره و تاریخ ته دې مراجعه وسي

( ۲ ) دا هغه مشهوره لیدی سیل ده چې حقیقي نوم یې " فلوریا نشیل " وو او په افغانستان کې ډیره موده قیدي ، او د خپلو خاطراتو ډیره برخه یې د یوه کتاب په شکل خپره کړه

( ۳ ) دا هم هغه مسز ستورات ده چې د عسکری مهندس استورات ښځه وه .

# د علم اهمیت

محب الله ( عصمت )

دا ښکاره خبره ده چې په مخلوقاتو کې بشر د کرامت او شرافت په نامه بلل سویدی او بهتر په انسانانو کې هغه انسان دی چې د علم او عرفان په نسبت یې ځان ته ممتاز شرافت حاصل کړی وي که موږ د قران عظیم الشان ایاتونه په یاد راولو چې ابو البشر سیدنا ادم علیه السلام ته د شیانو د نومونو تعلیم ورکړل سو یعنی پروردګار عالم د ټولو شیانو نومونه او علم ورته وښودی او بیا ادم علیه السلام هغه و ملایکو ته ور وښول چې په دغه نسبت سره د ټولو ملایکو سجدې وده ته وسوي اولین معلم د بشر پخپله پروردګار عالم دی چې و بشر ته یې لارښوونه وکړه . لکه چې فرمائی :

خلق الانسان علمه البیان

یعنی پیدا یې کړی انسان او ور وښودی بیان ګوهم معلم د ملایکو او د بشر سیدنا ادم علیه السلام دی ، دریم معلمین چې د بشر ددیني او دنیائی لارښوونې لپاره مبعوث سویدی هغه دانبیاؤ علیهم السلام په ذریعه و منځ ته راغلي دي لکه چې په قران شریف کې یې هم ذکر شوی دی .

علم الانسان مالم یعلم

یعني لوی خدای ( ج ) فرمائي چې موږ ښوونه وکړه و انسان ته د هغو شیانو چې دمخه نه پوهیدل که موږ د حقیقت په سترګه وګورو چې هیڅ کار او کسب نلري او [illegible] بې علمه هیڅ یو کار و مخته نسي بیولای نو دلته د علم او دانش اهمیت معلومیږي .

رسـول الله صلـي الله علیـه والسـلام فرمائی :

کن عالما او متعلما او مسمعا و لاتکن رابعا فتهلکه .

اوسه عالم او یا زده کونکی او یا غوږ نیونکي مه کیږه ځلورم چې جاهل دی نو معلومه سوه چې جهالت لوی هلاکت دی هغو کسانو چې د ښوونکو له ښوونو څخه یې استفاده نه ده کړي او محروم پاته سوي دي هغه په مړو کښني شمارل کیږي .

ابونصر فارابي چې ملقب په ثاني معلم دی وائي :

چې په تحصیل د علم کښي تر هغه وخته پوري کوښښ پکاردی چې په شرافت د نیکانو سره مشرف شي . د نړۍ نامتو او لوی عالم ارسطو وائي :

چې ما د طلب علم ، د طمع او د جاه لپاره نه دی زده کړی بلکي غوښتل مې چې جهالت را څخه ورک سي .

او بل یو لوی عالم ( افلاطون ) بیا وائي : چې جهالت لوی عیب دی نو د علم او دانش تحصیل تر هغه په کار دی چې جهالت ورک شي دا ټولې ویناوي دلالت کوي د جهالت پر ورک تیا باندي نو معلومه خبره ده چې علم او ښوونکي لوی اهمیت لري .

پای

## پاته د طالبانو بریالی یوځي ...

نود امریکا په بې وسۍ او بې بصیرتۍ باندي پوره دلالت کوي . د پاکستان او افغانستان په اړیکو کې تل ترینګلتیا موجوده وي . حکومتونه یې یو له بل سره توره تور بریښي وو خو ملتونه یې سره غاړه غړي . یوځه چې ډیر ښکاره دی هغه دا دي چې پاکستان هیڅکله هم د افغانستان په اړه حقایق په نظر کې نه دي نیولي بلکي خپله باندیني پالیسي یې تل د نورو فکتورونو له مخي عیاره کړیده . پاکستان یواځي هغه مهال له منطق نه کار واخیست چې د طالبانو حکومت یې په رسمیت وپیژانده . اوس چې شمالي ټلواله د خپل ژوند وروستی شپې او ورځي شماري او طالبان د پنجشیر نیولو ته وزري څنډي نو په دغسې حالت کې دا د پاکستاني حکومت دنده ده چې د ځمکنیو واقعیتونو په نظر کې نیولو سره په فعالو ډیپلوماتیکو هلو ځلو لاس پوري کړي . د پنجشیر په نیولو سره به طالبان وتوانیږي چې په یوه مخیز ډول باندنیو لاسوهنو ته ماتي ورکړي . هغه لاسوهني چې په ۱۹۷۹ کال کې د شوروي له مداخلي نه پیل او اوس تر دوشنبې پوري محدودي شویدي طالبان په خپل بې ساري ثبات او والولعزمي سره و توانیدل چې د نړۍ ټولو طاغوتي ځواکونو ته ماتي ورکړي د خپلو مخالفینو په ټکولو کې چې هغوی له کومي یوځي ستراتیژۍ نه کار اخستې هغه نه یواځي دا چې بې ساري او حیرانونکي دی بلکي د ستایلو وړ هم دي .

واقعیت دا دی چې افغان غیور ملت هغه بې ساري کار نامه تر سره کړیده چې د هغې په وړاندي نه اقتصادي منطق کار کولای شي نه هم عادي جګړه ایز اصول او قواعد

پاته برخه پر مخ کې

دغه هیواد چې افغانستان دی له یوه مخه خراب شویدی حکومت یې له څو زرو او له کار لویدلو جنګي ماشینونو پرته نور هیڅ نه لري په دیپلوماتیک ډګر کې ورته ټول خلک تیره په لاس ولاړ دي او د نړۍ ستر ځواکونه یې په ښکاره ډول د ښمنۍ ته ملا ترلي ولاړ دي مګر له دې هرڅه سره سره دغه ملت د خپل ایمان لمنه نه ده پرې ایښې او چې هغه لوی ځواک په ویسا او توکل باندي پاتې چې په وړاندې یې ټول ځواکونه سر ټیټي دي

ریښتیا هم دا هماغه سبق دی چې افغانانو موږ ته راښودلی دی په دې شرط چې موږ یې هم زده کړو پای

ماخذ جنګ ورځپانه کراچي یکشنبه د نومبر پنځمه نیټه

## پاته د روغتیا د پاڼې پاتې ...

ده . چې پرته له ستنو څخه کارول کیږي . د اکوپنکچر ټکي او خاینونه د ګوتو او یا یخ څوکو وسیلو په مرسته پارول کیږي دا چې زموږ په بدن کې اکوپنچر په څه ډول او څرنګه کار کوي پوهانو ورته په داګه او د ثبوت سره ځواب نه دی موندلی . په دې باب څو فرضیې او اټکلونه شته چې موږ به یې په دې لیکنه کې تر ټولو ډیر منلي او نامتو اټکل یا کړو دغه اټکل د لوی وره ځارنې ( Gate Control ) په نامه یادیږي ددغه اټکل په بنه د خوږیدلو انګیرنه ( احساسونه ) د عصبي سیستم پر هغه برخه ځارل کیږي چې تکانو پرې اوړي ( تنظیم ) مومي او بیا په درد او خوږیدلو بدلیږي د عصبي سیستم دغه برخه د لوی وره ( Gate ) په نامه یادیږي که پر دغه Gate د ډیرو تکانونو ګوزارونه وشي نو دغه Gate پکښې ډوبیږي او بیا ترل کیږي چې بیا ( Gate ) د ځینو نورو تکانونو د تګ یا پرمختګ موخه نیسي . تر ټولو دمخه هغه تر ټولو واړه او کمکي وړونه ترل کیږي عصبي ریښکي ( Fibes ) چې د " C " تارونو په نامه یادیږي دا هغه ورونه ( Gates ) دي کوم چې د اکوپنکچر په بهیر کې ترلي وي ډیری ناروغی دي چې د اکوپنچر په مرسته یې بریالي درملنه کیدای سي او یا په درملنه کې یې اغیزمنه ونده اخلي هغه ناروغي چې په ټولیزه توګه د اکوپنکچر په مرسته درملیدای شي دا دي

lower ، Arthritic Condition ، Cervical spondylosis ، bakache Allergic Reaction ، Condyliteis د سر خوږی ټول ډولونه د نیم سري په شمیر په ټولیزه ( عمومي ) او ځانګړي ( موضعي ) بې سده کولو کې د جراحي په ګډون

Use for General and specific analgesia including surgery and depression anxiety ) کارولې شو د سګرټ ، الکول او ځینو نشیزه توکیو ( موادو ) او درملونو په خوشې کولو کې هم ډیر ګټور ثابت شوی دی

## پاته ستاد پکړی ولونه ...

څنګه دی کار او روزګار څنګه دی امنیت بنه دی د نړیوالو د بې رحمه بندیزونه اثر څومره دی زه هم لکه یو پوخ ډیپلومات په ډیر داډه زړه مې ډیر خوندور تشریحات ورکړل چې ریښتیا سې میدان هم خالي و وروسته مې ترڅنګ ملګری واني زه هم د طالبانو په اړه ډیري ورځپاڼي ګورم د پاکستان اکثره ورځپاڼي چنداني معلومات نلري زه د طالبانو په اړه ډیر معلومات د ضرب مومن له اونیزې راټولوم د طالبانو له اسلامي تحریک سره ډیره مینه لرم دلته مې له ډیري ازادي او ګډوډۍ زړه ډیر په تنګ دی غواړم چې افغانستان ته یو سفر وکړم د کفارو دا ناروا پریکړو د مسلمانانو کرکه ډیره کړې زموږ هغه کرکه چې د جهاد بدنامونکو ټوپکیانو په وخت کې د افغان او مجاهد له نوم سره لرله اوس مو خدای سته . طالبانو هغه کرکه په مینه را بدله کړې هغه یوداسي مینه چې هر افغان راته د نړۍ د مسلمه امت د یو رهبر غم شریک په توګه هر طالب د پیغمبري وارثت د یو داعی په توګه را ته څرګندیږي پخوا چې به چا افغاني لباس کړی ویا به یې پکړی په سر وه نو موږ ته به د یو شوکه مار وطن وړانونکي په توګه ښکاریدی خو اوس یې الحمدالله یو فاتح په ایماني غیرت سمبال پیژنو اوس موږ دا واقیعت منو چې د جهاد له بري وروسته هغه جهاد بد نامونکي یو څو مفسدو کسان و افغاني ټولنه په مجموع کې فساد نه خوښونکې ټولنه ده بس همدا خبري وې چې زما د مطلب پر ځای یې چیغه کړ کلفتن ، کلفتن زه هم راکښته شوم د شهید عبرت دا شعر مې د خانه سره ویلو

ای مسافره ای ستومانه اشنا
بنلکی منزل دی لامزلونه غواړي
دغه له تورو شپو نه ډکه دنیا
ستا د سرو وینو مشالونه غواړي

په بازار کې د خلکو له پکړی سره د کرکې پرځای مینه وه پولیسو هم د پخو په څیر د افغاني په نامه نه څورولو هرچا به یې د ترلو د چل راته ویل او یا به یې د درندوالی معلومات را ځنې کولو په ښار کې ډیر وګرزیدم پرته لدې چې و ځان ته مې د پکړی په ترلو کې عزت موندلی وي نور مې هیڅ ستونځه نه ده لیدلي چا تر ګل ترخه هم ندي راته ویلې کله چې مې د اطلاعاتو او کلتور مربوط نشراتي کارونه سرته ورسیدل بیا نو ما زدیګر محال کشر کاکازاده د کوټې تر اډې پوري را ورسولم پینځه بجې وي چې را روان شولم ټوله شپه مې منزل وکړ سهار کوټې ته را ورسیدم له هغه ځایه د غرمې دوولسو بجو ته کندهار ته راغیستون شوم پای

## پاته بې شعوره ...

پـه څټ سپړیږم . و دریـغ تـه ازم دي پـه مقـابل کـې امریکایـان د افغانسـتان پـر خـلاف بندیزونـه لاپسـي ټینـګوي . او د نړیوال شرم و هغه کچ او مقیاس ته رسیدلي دي چـې یـو سیاسـي یتیم تـه یـې د افغانسـتان د جمهور رئیس ؟؟! په توګه عمومي اسامبله کې د وینا بلنـه او د ګډون کولو دعوت ورکړ په داسي حال کې چې دغه خواره کوټی یتیم نـه په اسمان کې ستوری لري اونه پرمځکه سیوری نه یې په افغانستان کې د جمهوري ریاست د یوان- سنه او نه یې محضر عام نه یې دفتر شته اونـه یـې لنبکـر . حتـی چـې د ملـګرو ملتونو له اداري سره یې د ارتباط لپاره د پستي ادرس نښه او نښانه هم نشته که اوس هم د نړۍ په پوهنتونونو او لیسو کې استادان له شاګردانو پوښتنه وکړي چې تاسي په دنیـا کـې داسـي جمهور رئیس لیدلی دی چې پستي ادرس نـه لـري نـو شاګردان به هك پك پاتي شي کیدای شي په یو میلیون شاګردانو کې یو شاګرد هم داسي پیدا نه شي چې ووایي هو ځکـه دا خبره بیخي د باور وړ نـه ده او نـه خـو د سلیم عقل او روغ فکر خاوند په دي هکله سوچ کولای شي . خو د امریکایانو کرکه د اوبن کرکه ده کرکه او نفرت هـسي هم د زړه صفا او د فکر ځغـستا تـه لینګته ړدي خو کله چې بیا کرکه له یوه غبي جسود او د شعور لـه قوي څخه د عاري او خـلاص حیوان وي بیا نو مه کوه خبره .

## پاته دکوه نور الماس . . .

کله چې شاه محمود واکمن شو نو دا دواړه غمي یې تر لاسه کړل او بیا تر هغه وروسته د شاه شجاع لاسته ورغلل کله چې شاشجاع تر لومړي پلا واکمنی وروسته په ۱۸۱۰ میلادي کال را ولپنډۍ تـه وتښتید ، نو د پنجاب سك واكمن رنجيت سنګ ترې په ۱۸۱۳ میلادي کـال پـه زور سـره دغـه الماس تر لاسه کړ . رنجیت بـه هـم لکـه د تیمورشاه په څیر د کوه نور الماس په ښي مټ او فخراج په چپ مټ پوري تړه . تر رنجیت سنګ وروسته دغه الماس د هغه زوی تـه پـه میراث پاتي شـو ، خـو پـه ۱۲۶۳ ق ( ۲۱۸۴ ) کـال کلـه چـې د هغـه زوی دلپ سنګ یا دهولیپ سنګ دیوې جګړې په ترڅ کې د انګلیسانو له خوا ماتـه وخوړه . نو خزانې یې هم د کوه نور الماس سره یـو ځای د انګریزانـو لاسته ورغلی . چـې پـه پـای کـې د ۱۲۶۶ قمـري کال د رجب په ۲۲ مه نـېټه د کوه نـور الماس د یو انګریز جنرال لـه خـوا چې د رنجیت سنګ د زوی نه یې تر لاسه کړی و ، د انګریز د هیواد ملکي ، وکوریا تـه د سـوغات پـه تـوګه ورکـړای سـو ، چـې د انسایکلو پیډیـا بریتـا نیکـا پـه حوالـه نوموړی الماس په ۱۹۳۷ عیسوي کال د بریتانیا د ملکې په تاج وځړول شو چې تـر ننه پوري د هغه هیواد دملکې دوه یمې الیزابت د تاج ښکلا ده .

د کوه نـور المـاس پخـوا تـر دې چـې وتـوږل سـي ۳۸ ، ۷۹۳ قیراطـه وزن درلـود ( یـو قـیراط مسـاوي دی د ۲ ، ۰ ګرامو سره ) شاه شجاع د لومړي ځل لپاره هغه د ( هور تنزیو برګیو ) په نوم یو ایتالیا ییت جواهر جوړونکی ته د توږلو دپاره ور وسپاره ، خو په پای کې پخپل دې عمل داسي پښیمانه شو ؛ چې برسیره پردې چې توږونکی تـه یې د هغې اجوره ورنکړه ، د نوموړي نه یې زر روپۍ د الماس د توږلو تاوان هم واخیسـت وروسـته لـه دې چې نوموړی الماس د انګلستان ملکـې تـه ورسید ، هغه یې د دربار د قیمتي ګاڼو په جوړ نځای کې ښه پوره وتوږه چې اوس یې وزن ۱۶ ، ۱۰۶ قیراطو تـه رسیږي د خبري سرچینو او یو شمیر دله ایزوارتباطي وسایلو له لارې په دې وروستیو وختو کې یو شمیر اوا زې خپرې شوې چې د هند ، ایران ، او پاکستان هیوادونو د کوه نور الماس د ملکیت دعوه کړې او د انګلستـان دهیواد نـه یې د هغې د ا سترداد غوښتـه کـړې ، خـو پـه لاندنیـو دلایلـو نومـوړی المـاس د افغانسـتان لرغونـي او ملـي شتمني ګڼل کیږي .

۱ - داچې نوموړی الماس د لومړي ځل لپـاره د مـالوا دواکمنـانو څخـه دهغـوی پخپله خوښه او رضا د هند افغان واکمن هغـه د پیسـو پـه بـدل کـې پیرودلي ، او څرنـګه چـې قـانوني اخـتل سـوي متاع د پیرودونکی او د هغې د وارثي حق وي ، نـو ځکـه خـو د المـاس د افغانـانو شرعي حق ګڼل کیږي .

۲ - څرنګه چې نوموړی الماس د دویم ځل لپاره د نادر افشـار د حرم لـه خـوا د هغـه خدمت په بدل کې چې افغانـي احمدخان د نادر افشـار تـر مړینـې وروسته د هغـه پـه کورنـۍ کـې د المـاس د موجودیـت څخـه هیڅ راز خبرتیـا نلرلـه لـه دې امله د المـاس پـه هکلـه د ایـران او یـا نـورو هیوادونو دعوه بې ځایه او هغه بیـا هم د افغانانو ملکیت بلل کیږي .

۳ - په زماني او تاریخي لحاظ د کوه نور الماس د افغاني واکمنانو په کورنیو کې تر بل هر هیواد زیاته موده ساتل شوي ، لدې امله هـم د انګلیسـتان پـه ګډون د نـورو هیوادونو د ملکیت دعـوه . د افغانستان پـه پرتلـه بـې بنسـته بریښـي او هغـه د افغانانو شتمني ګڼل کیږي ، چې هیله من یو ډیر ژر افغانانو ته را وسپارل شي .

# د کندهار اوسني ليکگران

د عبدالواسع (هڅيال) په زيار

د کندهار مجلې درنو لوستونکو ! دا دی يوځل بيا ستاسو په مخ د هنري نړۍ ور پرانيزو . پدې هيله چې هنري تنده مو پرې ماته او سترګې مو پرې يخې سي . په دې برخه کې هغه ځوان ، تاند او ګلالي زلميان در پيژنو چې همدا اوس ، يې ليکګرۍ ته مخه کړې ده . موږ د همدې لړۍ په پنځمه برخه پيل کوو . د کندهار مجله په پام کې لري چې ددې لړۍ څخه وروسته د انځور ګرانو ، رسم کښونکو لړۍ هم پيل کيږي . ګران انځور ګران دې خپلې رنګينې انځور ګرۍ چمتو کړي .

د وويشتم بناغلی ( ارجاد )

بناغلي نوراحمد ارجاد له نن څخه ۱۹ کاله وړاندې د ۱۳۶۰ لمريز کال د حمل پر ۱۷ مه نيته د يکشنبې په ورځ د کندهار ښار په ۳ ناحيه کې د حاجي عبيدالله جان په درنه او دين دوسته کورنۍ کې دې فاني نړۍ ته سترګې پرانستې لومړنۍ ديني زده کړې يې د امام ابي حنيفه ( رح ) په اسلامي مدرسه کې تر ۹ ټولګۍ پورې ورسولې،هنري زده کړې يې د تکړه او نوماند وتلي استاد محمد طاهر ( ناتوان ) څخه تر لاسه کړې دي بناغلی اوس هم په هنري زده کړو بوخت دی د ځان دوکان نه لري خو خپلو ملګرو او يارانو ته د هغوی د غوښتنې پر اساس څه ليکي په نسخ او نستعليق ليکونو کې پوره مهارت لري دا يې هم د تاندو او هنري ګوتو ليکلې لاس ښيلګه ده .

قدر زر زرگر شناسد

قدر جوهر جوهری

لیکونکی عبدالهادی جهانی ۲/۸/۱۳۷۱ ل




پنځوېشتم : ښاغلی جهاني :

ښاغلي عبدالـهادي جـهاني ۱۳۵۹ لمريز کال د ثور د مياشتي په لومړۍ نيټه د کندهار ښار په پنځمه ناحيه کې د حاجي نور علي په کاله کې دې دنيا ته راغلی دی لومړی ديني زده کړي يې په احمديه اسلامي مدرسه کې تراتم ټولگی پوري رسولي دي . په همدې مدرسه کې يې د ځوان او تکړه استاد په ملا محمد ( همنوا ) څخه د ليکگري زده کړي کړي دي .

نوموړی استاد په نسخ او تستعليق ليکونو ښه بريمن دی . راسی يوځای يې د لاس ښکلي بيلگه وگورو .

شپږويشتم : ښاغلی قلميار

ښاغلی هدايت الله قلميار د حاجي سيف الله زوی په ۱۳۱۶ لمريز کال د کندهار ښار دلو ويالي په سيمه کې زيږيدلی دی . لومړنی ديني زده کړي يې د شاه بازار په احمديه مدرسه کې تر اووم ټولگی پوري رسولي دي .

هنري زده کړي يې د همدې مدرسي د تکړه استاد ملا محمد همنوا په لارښوونه تر لاسه کړي دي .

ښاغلی قلميار هم په نسخ او نستعليق ليکونو کې اوږد لاس لري . دا يې هم د لاس خوندوره ليک بيلگه ده .

وانت خير الرازقين

ليکونکی سيد عليم حليم

دروېشتم  ښاغلی ( حليم )

ښاغلی سيد عليم ( حليم ) د حاجي عبدالله اغا زوی د ۱۳۶۴ لمريز کال د زمري د مياشتي په لومړۍ لسيزه د کندهار ښار په پنځمه ناحيه کې زيږيدلی دی

ديني زده کړي يې په احمديه مدرسه کې تر شپږم ټولګی پوري رسولي دي او د ديني زده کړي تر څنګ يې د ملا محمد ( همنوا ) تر ښڅپړي څارني لاندي د هنر نيلی هم مخ په بره خغولی دی چې دا يې هم د ډيرو منډو را منډو پايله ده ،

چې نن يې په ټوله احمديه اسلامي مدرسه کې د لومړي نمبر جايزه تر لاسه کړي او هم يې د ستر کتاب قران کريم په ويلو کې لومړی بريليک تر لاسه کړ ، څښتن دې نورهم بريالی لري ښاغلی حليم په نسخ او نستعليق ليکونو پوره لاس بری دی دا يې د لاس ښکلي او زړه وړونکی ليک بېلګه ده .

څلورويشتم  ښاغلی ( پوپل )

ښاغلی عبدالله جان پوپل د ۱۳۵۸ لمريز کال د ۶ شپږمي مياشتي په ۱۸ مه نيټه د سه شنبي په ورځ د کندهار ښار په دوهمه ناحيه د يحيی خان په کوڅه کې د ملا ګل محمد اخند په کاله کې دې فاني نړۍ ته سترګي روڼي کړي دي .

ديني زده کړي يې د شاه بازار په احمديه اسلامي مدرسه کې تر سره کړي دي د ډير وړکتوب څخه يې د ليکګرۍ د هنر سره زياته مينه درلوده . همدا مينه وه چې ښاغلي يې د هنر تر لوړو پولو پوري را ورساوه. هنري زده کړي يې هم په دغه مدرسه کې د خدای ( ج ) بخښلي تکړه استاد حاجي مولوی فضل محمد ( شيوا ) صاحب څخه تر لاسه کړي دي ښاغلي پوپل په ثلث او نستعليق ليکونو کې اوږد لاس لري . دا يې هم لاسي ښکلی ليک بيلګه ده



# مرکي او را پوروونه



## د معدن او صنايعو له رئيس ملا اکبر شاه جمالي سره مرکه

### هرفابريکه لرونکی له ۲ تر ۵ کالو پوری د گمرك د محصول څخه معاف دی

پوښتنه: څرنګه چې د افغانستان اسلامي امارت د ... امنيت له امله په هيواد کې سوله او ... رامي ده نو دي داومن وضعيت د هيواد پر اقتصاد څومره مثبت اغيزکړی د جنوب لويديخ زون په صنعتي چارو کې څه لاس ته راوړني سويدي؟

ځواب: څنګه چې تاسو او ټولو ګرانو هيوادوالو ته معلومه ده چې د اسلامي امارت له راتګ سره زموږ په هيوادکې سوله او امنيت راغلی او همدغه سوله زموږ د ګران هيواد پر اقتصاد مثبت تاثير ګډو د مثال په توګه په جنوب غرب حوزه کې د هلمند تصدي بست او حجاري او نجاري فابريکي او پروسس د نخي او پشمي فابريکي جوړي او فعاليت يې پيل کړی او همدا راز ديرش نوري شخصي فابريکي زموږ د ګران هيواد د ملي شتمنو تجارانو له لوري د کندهار په ښار کې جوړي او فعاليت ته چمتو دي.

پوښتنه: په جنوب لويديخ زون کې چې تاسو يې مسوليت په غاړه لری د هيواد د شتمنو پانګوالو لپاره په صنعتي چارو کې موځه اسانتياوي برابري کړي اوتر کومه ځايه مو ور سره د کار د پرمخ تګ او صنعت د پراختيا په برخه کې همکاري کړي ده؟

ځواب: زموږ شتمن هيوادوال کولای شي چې په ډيره اسانی سره د صنعت په برخه کې هر ډول فابريکي چې دوی و غواړي هغه جوړولی سي او د فابريکي لپاره مناسبه ځکه د کندهار په پارك صنعتي کې په ډير ټيټ قيمت ورکول کيږي او همدا راز د برق يوه پايه قوي ترانسپارمر تر بازار په ارزانه بيه په دري قسطه د فابريکي ځښتن په واك کي ورکول کيږي همدا راز موږ د اوبو اسانتياوي او نورو ضروري شيانو مرسته ورسره کوو او هر فابريکه لرونکي په کندهار کې له ۲ تر ۵ کالو پوري معافيت لري يعني پدغه ټاکلي وخت کې که خپل سامان الات او نور لوازم له خارجه وارد کړي نو د ګمرك محصول يې معاف دی.

پوښتنه: لکه څنګه چې په هيوادکې د داومن امنيت په راتلو سره د هيواد د باندي افغاني سرمايه لرونکي او خارجي شتمن غواړي چې دلته په افغانستان کې خپلې پانګي واچوي فابريکي را انتقال کړي يا نوي فابريکې فعال کړي او يا په نورو صنعتي چارو کې کار وکړي تاسو هغوی ته تر کومه د کار کولو اجازه ورکوی او په کومو شرايطو ور سره موافق ياست؟

ځواب: په دوهمه پوښتنه کې مې درته وويل چې شتمن ورونه کولای شي چې د ټينګ امنيت څخه په استفاده چې داسلامي امارت تر واك لاندي سيمو کې

راغلی که و غواړي هر قسم فابریکي جوړ وای شي او مناسبه د خپل ضرورت په اندازه محکه برق او د برق ترانسپرمرونه په ارزانه قیمت ورکول کیږي او خارجي سرمایه لرونکي وروڼه که وغواړي چې خپل کار ته وده ورکړي او زموږ د وران هیواد په ودانولو کې برخه واخلي کولای شي چې په افغانستان کې خپلي فابریکي جوړي او خپل تولیدات په اسانی سره وبازار ته وړاندي کړي

د افغانستان اسلامي امارت هغه چا ته چې د خارج اوسیدونکي وي د فابریکي له اړتیا سره سم په اجاره مځکه ورکوي او یا دده په خوښه قرار دد ورسره کوي خو هغه افغاني وروڼه چې غواړي په افغانستان کې کار وکړي د مځکي قواله ورکول کیږي

پوښتنه لکه څرنګه چې زموږ ګران هیواد ۲۰ کلني جګړي له هره پلوه وران کړی په صنعتي برخه کې یې هم زښت زیات تاوان ور اړولی چې ډیري فابریکي یې له منځه تللي او هغه کارکونکي چې په فابریکوډکې په مسلکي توګه کار کولو ځیني د جګړو قرباني سوه او ځیني نور یې نورو هیوادو ته مهاجر او یا له کار لویدلي دي نو تاسو د هغو زړو فابریکو د فعالیت لپاره او یا د نوي ماډل فابریکو د مسلکي استادانو په را جلبولو او یا نوي شاګردانو په روزلوکې څه اقدامات کړي '

ځواب زموږ ریاست د مسلکي کسانو د روزني پخاطر د نساجي پشمي او نحي په ځانګو کې تر روزني لاندي دي او حیني نور یې پر خپل کار و مسلك لاس بري سوي دی او د نورو شاګردانو د روزني لپاره هم بو لړ پلانونه په نظر کې لرو که خدای کول ډیر ژر به عملي شي او د مسلکي کسانو د راجلبولو لپاره مو خپل کوښښ نـدی سپمولی هغه څوك چې د ګران هیواد په ویجاړ حالت یې زړه دردیږي د خپلي اسلامي او وطني همدردی له مخي را سره کار کوي او له نورو هغو هیوادوالو چې په خارج کې دي هم غواړو چې د خپل ایماني او وطني مکلفیت له مخي را سره کار وکړي

پوښتنه څنګه چې د جنوب لویدیخ زون د کانونو شتمني، زیرمي لري د تیرو حکومتونو په دور کې ددغو کانونو د را ایستلو په برخه کې یو څه کار شوی و ایا تاسو د هغو د را ایستلو په برخه کې هم یوڅه کار کړی دی ؟ او څومره عاید مو د اسلامي امارت بودجي ته راوړی

ځواب په تیرو حکموتونو کې چنداني استخراج زموږ په جنوب لویدیځه حوزه کې ندی سوي ځیني ځایونه یې کیندلي و خو موږ توانیدلي یو چې په فني توګه د مرمرو او رخام ډبري او فلورایټ دیوي دستګاه په واسطه را وباسو چې وروسته له منظوری د یو با صلاحته هیت ومنل شوه چې په ۱۴۲۱ کال کې ( ۲۲۴ لکه ) دري سوه څلور دیرش لکه پاکستانی کلداري د معدن صنایع ریاست په حساب کې د اسلامي امارت و بانك ته داخل کړي دي

پوښتنه کله چې د هیواد د تیري پخوانی ګډوډی په وخت کې له دغو کانونو څخه شخصي ګټي اخستل کیدي او په غیر قانوني توګه له هیواد د باندي ایستل کیدي ستاسو اداري ددغو کانو د ساتني په لاړ کې څرنګه اقدامات کړي ؟

ځواب لکه څنګه یې تاسو له کانونو څخه د سوء استفادي او شخصي استعمال خبره وکړه زموږ اداري ددغو کانونو د ساتني لپاره له ټولو ولسوالیو او د زون له مربوطه ولایاتو سره په تماس کې ده او د هغوی د ساتني لپاره مو پوره وس کړی چې اوس الحمدالله هیڅوك هم نشي کولای چې له دغو ملي زیرموڅخه شخصي ګټه واخلي او یا یې څوك زموږ له اجازي پرته په غیر فني توګه استخراج وکړي او یا غیر قانوني استفاده ورځیني وکړي

په اخر کې د کندهار مجلي لوستونکو او ګرانو هیوادوالو ته څه پیغام لری ؟

زما پیغام و خپلو ګرانو سرمایه دارانو او هیواد والو ته دا دی چې د لوی خدای ( ج ) په فضل د اسلامي امارت په راتلو په هیوادکې صلح او امنیت راغلی نو موږ کولای شو چې پدې ډاډمن امنیت او ارامی کې خپله سرمایه په کار واچوو رنګا رنګ نوي عصري فابریکي فعاله کړو چې له یوي خوا زموږ وران هیواد اباد او له بلي خوا زموږ بیچاره هیواد والو ته کار پیدا شي او د اقتصادي ستو نځو بار ورباندي سپك شي



# د واکسين په ذريعه په ماشومانو کې د کومو ناروغيو مخنيوی کيږي

**د واکسين په اړه د جنوب لويديځ زون د عامې روغتيا رياست د کتلوي معافيت د امر او کندهار پوهنتون د علمي مرستيال محترم پوهنيار ډاکتر رحمت الله سره مرکه**

پوښتنه کتلوي معافيت څه ته وايي او کومې دندې تر سره کوي؟

ځواب کتلوي معافيت د وقايوي طب يوه څانګه ده او په اختصاصي ډول تر پنځو کلونو کم عمر درلودونکو ټولو ماشومانو او همدارنګه د ۱۰ څخه تر ۴۰ کالو عمر درلودونکو ميندو ته د پوره دور واکسين لګولو دنده په غاړه لري

پوښتنه په واکسين سره د کومو ناروغيو مخنيوی کيږي او په ځانګړې توګه ماشومانو ته د کوم عمر څخه د واکسين لګول پيل او کم عمرکې پای ته رسيږي؟

ځواب هغه واکسينونه چې اوس د کتلوي معافيت لخوا په ورځني توګه لګول کيږي د ماشومانو ددغو خطرناکو ناروغيو څخه مخنيوی کوي

1 - Measlse يا د شري ضد واکسين! دغه واکسين د پيدايښت د نېټې څخه ۹ مياشتې وروسته ماشوم ته د يوه ځل لپاره د ستني په ذريعه لګول کيږي چې ماشوم ته د شري د مرض څخه معافيت ورکوي

۲- OPV يا د ماشومانو د فلج ضد واکسين' په عمومي توګه ددغه واکسين تطبيق د زيږيدنې څخه ـــ ۱ مياشت وروسته ماشومانو ته پيل کيږي چې په ترتيب سره درې دورې ورکول کيږي او د هرې دورې ترمنځ واټن يوه مياشت دی خو لکه څنګه چې د فلج ناروغی د بشپړې محوې پروګرام اوس په ټول افغانستان کې جريان لري نو په همدې خاطر ټولو هغه ماشومانو ته چې عمر يې تر پنځو کالو کم وي هم د فلج ضد واکسين د پراخو کمپاينونو په ترڅ کې ورکول کيږي

۳ - BCG د سل يا توبرکلوز ناروغی ضد واکسين ماشوم ته تر زيږيدنې وروسته سمدستي يو ځل تطبيق کيږي چې ددې واکسين يو ځل تطبيق ماشوم د نرې رنځ څخه ژغوري

۴ - DPT يا د توري غاړې ، تيتانوس او ستوني د پړسوب ناروغيو ضد ګډ واکسين دا واکسين هم د OPV د واکسين په شان په درې دورې کې ماشوم ته تطبيق کيږي او د ماشوم د زيږيدنې څخه ـ ۱ مياشت وروسته يې ماشوم ته تطبيق د ستنې په وسيله سره پيل کيږي او د هرو ۲ دورو ترمنځ واټن يې يوه مياشت دی چې هر ماشوم ته تر زيږيدنې وروسته تر ـــ ۳ مياشتې عمر پورې ددې واکسين ۳ دورې بشپړې تطبيق کيږي چې ددې واکسين په ۳ دورو سره ماشوم د توري غاړې ، تيتانوس او ستوني د پړسوب د خطرناکو ناروغيو په مقابل کې وقايه کيږي

۵ - TT يا د تيتانوس ضد واکسين دغه واکسين په ځانګړې توګه د ۱۵ کالو څخه تر ۴۵ کالو عمر لرونکو ميندو ته تطبيق کيږي چې لمړی يې ميندو ته د ۱۵ کلنۍ څخه وروسته پيل او دوهم دور يې تر لمړي ځل يوه مياشت وروسته دريم دور يې تر دوهم دور ۶ مياشتې څلورم دور يې تر دريمه دور ۱ کال او پنځم دور يې هم تر څلورم دور يو کال وروسته ميندو ته تطبيق کيږي

د تيتانوس واکسين د ۵ دورو په تطبيق سره مور د ټول عمر لپاره د تيتانوس په وړاندې معافيت پيدا کوي

بايد وويل سي چې کتلوي معافيت د ناروغيو په مقابل کې د ماشومانو د مقاومت د زياتوالي او د شب کوری څخه د هغوی د ژغورنې لپاره د شپږو مياشتو څخه تر يوه کلن عمر درلودونکو ماشومانو ته د ويټامين A کپسلونه هم استعمالوي

پوښتنه د فلج ضد واکسين پراخو

کمپاینونو ته مو اشاره وکړه که د کندهار مجلي درنو لوستونکو ته ددغو کمپاینونو په اړه څه توضیحات ورکړی ښه به وي؟
ځواب: موږ د جنوب لویدیځ زون په سطحه کې هم د نور هیواد په شان د فلج ضد واکسین پراخ عملي کمپاینونه درلودل چې دغه کمپاینونه د ۱۴۲۱ هـ .ق کال د محرم ربیع الاول، رجب المرجب، او شعبان د ۲۰۰۰ میلادي کال د مې، جون، اکتوبر، او نوامبر د میاشتو سره سمون لري د جنوب لویدیځ زون په مربوطه ولایاتو لکه کندهار، هلمند، زابل، ارزګان، او نیمروز ولایتونو په مرکزونو، ولسوالیو او ټولو کلیو کې کور په کور عملي سویدي چې پدغه ولایتو کې تر پنځو کلونو کم عمر درلودونکي تقریبا ۹۵۰۵۸۸ نجونې او هلکان د کتلوي معافیت سره ثبت دي چې په هره دوره کې ددغه ولایاتو تر پنځو کلونو کم عمر درلودونکي ماشومان د فلج په ضد واکسین سویدي چې ویلای سو ددي زون تر پنځو کلونو کم عمر درلودونکي هر ماشوم د فلج ناروغی په مقابل څلور ځله واکسین سویدی خو د یا دوني وړ ده ددي زون مربوط دوي ولسوالي چې هغه هم د ارزګان ولایت د شهرستان او د ایکندي ولسوالي ماشومان زموږ لخوا نه بلکه د بامیان ولایت د کتلوي معافیت لخوا په کپاینونو کې واکسین او ددي زون د نورو ټولو ۵ ولایتو او ۵۰ ولسوالیو او کلیو ماشومان په بشپړه توګه واکسین سویدي
پوښتنه: دغه کمپاینونه پدې پراخه پیمانه څنګه مخ ته بیول کیږي ایا ورته روزل سوي کسان لري که څنګه؟
ځواب: د هر کمپاین لپاره موږ ۵۷۱۰ تنه رضاکاران او ۴۵۶ تنه سوپروایزران ۵۰ تنه ناظمین ۴۵۶ تنه مبلغین او انتقال لپاره په هر کمپاین کې ۲۵۱ عرادي موټر سیکلان ۲۷۸ عرادي موټران او ۳۵ ځاروي برابروو چې پدې توګه د زون هري لیري سیمې ته واکسین رسیدای سي

پوښتنه: څومره داډه یاست چې ددې کمپاینونو په اجرا سره به مو د فلج واقعات په کومه اندازه کنټرول کړي وي؟
ځواب: لکه څنګه چې تاسو خبریاست چې هر کال دغه کمپاینونه زموږ په حوزه کې اجرا کیږي او دوه کاله مخکې موږ د AFP سرویلانس (د حارنوم فلج احمیات) مرکزونه پدې حوزه کې نه درلودل خو له نیکه مرغه ددغه تیرو ۲ کلونو په بهیر کې موږ توانیدلي یو چې د ولسوالیو په سطحه داسي مرکزونه ایجاد کړو او موږ ته د فلج د واقعاتو را پور راکوي کوم چې دوی په ښارونو او کلیو کې په نښه کړي او لیدلي وي نو د همدې سرویلانس د نتایجو په اساس ویلای شم چې د ۱۹۹۹ م کال په پرتله ۲۰۰۰ م کال کې د فلج واقعات ډیر کم تشخیص سویدي او هیله مند یو چې د ۲۰۰۱ میلادي کال تر پایه د فلج واقعات د ګوتو په شمیر سره ولیدل سي
پوښتنه: که چیري بیا هم په ۲۰۰۱ کال کي د فلج واقعات د ګوتو په شمیر ولیدل سي څه کوی او ایا د فلج ناروغی د بشپړه له منځه تلو لپاره بیا هم پراخ کمپاینونه په پام کې لری؟
ځواب: هو موږ د احتیاط له مخې د پولیو یا فلج ناروغی د بشپړي نابودۍ لپاره په خپله حوزه کې د پولیو یا فلج ضد پراخ کمپاینونه په نظر کې لرو
پوښتنه: د جنوب لویدیځ زون په مربوطاتو کې د واکسین لګولو څو دایمي مرکزونه لری؟
ځواب: د واکسینونو د ښه تطبیق په منظور مو د جنوب لویدیځ زون په ۵۲ ولسوالیو کې د واکسین لګولو ۳۵ مرکزونه ایجاد کړي هو همدا ډول د زون په ټولو مربوطه ولایاتو لکه هلمند، زابل، ارزګان، او نیمروز په ولایاتو کې د واکسین ساتلو مرکزونه موجود دي او د زون په سطحه هم د واکسین ساتلو عمومي مرکز په کندهار کې د جنوب لویدیځ زون د عامې روغتیا ریاست په کتلوي معافیت کې موجود دی د واکسین لګولو په هر مرکز کې دوه تنه واکسیناتوران توظیف سوي ترڅو هره ورځ بیله وقفې ماشومانو او میندو ته په خپل وخت واکسین ورسوي او د زون په سطحه کتلوي معافیت ۱۶۰ تنه کارکوونکي لري چې په مختلفو برخو کې دنده تر سره کوي. باید وویل سي د کتلوي معافیت د دفتر سره د واکسین په برابرولو او پروګرامونو په پرمخ بیولو کې د ملګرو ملتونو د ماشومانو نړیوال صندوق یا یونیسف او نړیوال روغتیا نی سازمان اداري هر اړخیزي مرستې تر سره کوي البته باید ووایم چې د واکسیناسیون چاري د مربوطه واکسیناتورانو په ذریعه په ۲ ډوله مخ ته بیول کیږي
لومړی دواکسیناسیون ثابت فعالیت: دا دواکسین لګولو هغه ډول دی چې واکسیناتوران په یوه معین کلنیك یا مرکز کې فعالیت کوي او ماشومان او میندي په خپل وخت د خپلو واکسینونو د پاته دورونو لپاره او یا نویو دورو د پیل لپاره مراجعه کوي او واکسین پدې مرکزونو کې ورته تطبیق کیږي.
دوهم د واکسیناسیون دواتریج یا ګرځنده فعالیت: پدې ډول کې واکسیناتوران دنده لري چې لوي معیني ساحي ته چې اوسیدونکي یې د ځینو ستونځو او یا د لاري د لیري والي له امله نسي کولای روغتیا مرکز ته د واکسین لپاره حاضر سي په هره میاشت کې یو ځل ورسي او ماشومانو او میندو ته واکسین تطبیق کړي ترڅو بیله خنډه ماشومان او میندي واکسین سي

پای

# خبرونه او راپورونه

## د کوکنارو د نه کرلو په اړه د عالیقدر امیرالمومنین د فرمان ملاتړ وشو

په هیواد کې د کوکنارو د کښت د بشپړ بندیدو په اړه د عالیقدر امیرالمومنین د فرمان څخه د هیواد د پراخو پرګنو د ملاتړ په لړ کې د شعبان المعظم د میاشتي په ۷ نېټه د سمنګان ولایت په ۹ د شعبان د کابل ولایت د چهاراسیاب ولسوالي په ۱۴ د شعبان د کندهار ولایت د ارغستان ولسوالي ۱۷ د شعبان د هلمند ولایت د موسی قلعی ۱۸ د شعبان د کندهار ولایت د ډنډ ولسوالی ۲۲ د شعبان د هلمند ولایت د نوزاد ولسوالی او همدارنګه درمضان المبارك د میاشتي په ۵ نیټه د کندهار ولایت د میوند ولسوالی دیندوسته خلګو ددغه سیمو دیندوسته خلکو په ګډون د پراخو غونډو په ترڅ کې ددغه فرمان د بشپړ تطبیق څخه خپل غوڅ ملاتړاعلان کړ.

## د کندهار د سپین بولدك په ولسوالي کې د چرسو ۲۰ او ۲۰۰۰ کیلو ګرامه چرس وسوځول سول

د معروف له اقامي او منکراتو د مخنیوي او له منځه وړلو لپاره د کندهار ولایت د امر باالمعروف او نهی عن المنکر ریاست د رئیس محترم مولوی غلام حیدر ( حیدري ) په مشري ددغه ریاست موظفینو د نورو ناوړه او منکرو اعمالو د مخنیوی او له منځه وړلو لپاره د خپلو کړنو ترڅنګ خپله پوره پاملرنه د مخدره موادو کشف او له منځه وړلو ته هم اړولي چې د شعبان په ۱۳ نېټه ددغه ریاست بیدارو موظفینو د کندهار ولایت د سپین بولدك په ولسوالی د بامبول په سیمه کې ۲۰۰۰ کیلو ګرامه چرس چې په ۴۰۰ بوجیو کې ځای په ځای شوي د چرسو د برابرولو په دنګوګو(کارخانو) کې کشف او ونیول شوی چرس یې په دغه سیمه کې د کارخانو سره یو ځای وسوځول

## په اقتصادي او انکشافي ډګر کې

### د هیواد د خصوصي پانګې اچونې د اداري غونډه وشوه

زموم خبریال د شعبان په ۱۳ نیټه خبر راکړ چې د هیواد د خصوصي پانګي اچوني د پرمختیا او هڅوني مرکزي اداري د سمون بورد لخوا جوړه شوي وه د چاکلیټ جوړولو ، یخ جوړولو ، کولمو پروسس ، کمپیوټري خدمتونو ، کاغذجوړولو ، د غالیو د تار تاوولو ، ساختماني موادو د برابرولو ، بسکیټ جوړولو د



مکروني ائس تولیدولو پلاستیکي مصنوعاتو او صابون جوړولو د ۲۳ فابریکو جوړول د ۵۵ میلیاردو او ۶۹۹ میلیونو افغانیو په لمړنی پانګه او د ۱۵۰ میلیاردو او ۳۱۰ میلیونو افغانیو په ورستي پانګه تائید شول

د شعبان پر ۱۱ مه زموږ خبریال خبر راکړ چې دهیواد د بیا ودانولو لپاره د اسلامي امارت د انکشافي پروګرامونو په لړ کې دکابل ښار د میرویس میدان څخه د وردګو تر مرکز میدان ښار پورې د ۳۲ کیلو مترو په اوږدوالي د کابل کندهار د لوی لاري داساسي جوړوني او قیر اچوني کار پای ته ورسید او دغه لار د ترافیکو پر مخ پرانستل شوه



او همدا راز د شعبان په ۱۴ مه د پکتیا ولایت د سرکي او شاهی کوټ د سیمو سړک چې د تیرو شلو کلونو را یدې خوا د تیرو حاکمانو په وخت کې ماینونه ورباندې فرش شوي وه د ماینونو څخه پاکه او د ترافیکو پر مخ پرانستل شو

زموږ خبریال د شعبان په ۱۶ نیټه خبر راکړ د لښکرګاه د وراهی تر ګرشک پورې د کندهار هرات د لویی لارې د ترمیم او بیا جوړوني کار په اساسي توګه د کندهار د فوائد عامې ریاست لخوا پیل شو

همدا راز د شعبان ۲۷ خبریال خبر راکړ

چې د افغانستان اسلامي امارت په تعلیمي او روزنیز ډګر کې د نورو تعلیمي او روزنیزو موسساتو ترڅنګ د اسلامي امارت د ملي دفاع وزارت مربوط د حربي پوهنتون ۲۲ تنو د هوايي او مدافعه هوايي ۶۰ تنو او د تخنک اکاډیمی ۱۷ تنو فارغینو ته ددغه وزارت د مشرتابه لخوا چې ددغه موسساتو څخه فارغ شوي وه د فراغت سندونه ورکړل شول د پوهني او روزني په ډګر کې

د شعبان ۲۲ نیټه
د تخار ولایت دبنګي پل چې د هیواد دښمنه ملیشو لخوا نړول شوي وو د بیا جوړوني کار یې د کندوز ولایت د انکشافي پروژي لخوا د امارت په بودجه یې جوړ ولو کار پیل شو چې ډیر ژر به د د تګ او راتګ باعث وګرځي

۶ د رمضان المبارك
د کندهار د سپین بولدك د لویی لاري د ترمیم او قیر اچوني کار چې د همدې ولایت د فوائد عامي ریاست لخوا ددغه لاري په اوږدو کې د میل د پله څخه پیل شوي وه د سپین بولدك ولسوالی ترمرکز پورې پای ته ورسید او س یې د ترمیم کار له بولدك څخه د ویش تر سرحدی بازاره پورې دوام لري

## د بغلان ولایت د ډبرو د سکرو تصدي بیا فعاله شوه

زموږ خبریال د رمضان په ۷ نیټه خبر راکړ
د هیواد د شمالي زون د ډبرو سکرو د تصدي فني مرستیال محترم انجنیر عبدالقدیر زموږ خبریال ته وویل د بغلان ولایت د کرکر او دودکش د ډبرو د سکرو کانونه چې د هیواد په اقتصاد کې ستر ارزښت لري او دغه کانونه یو ځل د یوي د طبعي چاودني او بل ځل د رباني د اداري لخوا د بمباری له امله سخت زیانمن شوي او ټول وسایل یې په یو مخیزه توګه له مینځه تللي خو د وسایلو د نشته والی او نورو ستونځو د موجودیت سره سره ددغه کانونو کارګران توانیدلي چې ډیرو لومړنیو او محدودو وسایلو په وسیله د پلان سره سم د روان کال په تیرو ۷ میاشتو کې ۱۸۰۰۰ ټنه د ډبرو سکاره تولید او کلنی پلان ۹۰ فیصده تطبیق کړی

## د تخار ولایت مخابراتي سیستم بیا په فعالیت پیل وکړ

۷ مه د رمضان المبارك
د تخار ولایت مخابراتي او پستي سیستم چې د ملیشو لخوا له دیره وخت را پدې خوا ګډوډ او ویجاړ شوی و په دغه ولایت کې د اسلامي امارت د حاکمیت را پدې خوا د نورو ولګتو امارتي موسسو ترڅنګ له سره بیا فعال او کتي حسي ته چمتو شو



# لیکونه مو را ورسیدل

د کندهار ولایت د اطلاعاتو او کلتور ریاست محترم رئیس ملا عبدالحی مطمئن او د کندهار مجلې محترم مسول او ستاسي ګڼ شمیر همکارانو ته تر هرڅه اول د زړه له کومې

السلام علیکم ورحمت الله و برکاته

وایم او وروسته په ربښتیا چې ستاسي خدمتونه د ستایلو وړ دي چې یوه ښېلګه یې د کندهار او خلافت مجلې دي چې ستاسو په زیار ستاسو له لوري ګرانو هیوادوالو ته د ډالۍ په شکل په ډیره منظمه توګه پر خپل ټاکلي وخت چې دوی میاشتي وخت یې دی چاپیږي

او ډیر په زړه پوري معلوماتي ، سیاسي ، فرهنګي او علمي مضامین پکښې تر سترګو کیږي چې په زیات تعدا سره مینوال او شائقین لري . خدای دي په خپل دربار کې دا خدمت له تاسو نه قبول کړي او خدای دي لازیاته کامیابي پدې ډګر کې در په برخه کړي . خو له تاسو نه زه او زما په څیر یو شمیر نور ملګري یوه غوښتنه لري هغه دا چې که د کندهار ښائسته دوه میاشتنۍ مجله په یوه میاشتنۍ باندي واوړي چې ادبي تنده مو پري ماته شي ډیر به ښه وي .

والسلام په درنښت او منني

ورور مو فیض الحق فرهاد له کابل نه

---

فرهاده وروره سلامونو ته دې وعلیکم السلام په ویلو غاړه باسو .

خدای دي تاسو هم جوړ لري ګرانه دا چې زموږ ددي فرهنګي خدمتونو په ستایلو دي موږ تازولي یو خداي دي له تاسو او نورو ټولو ځوانانو ددین او وطن کار واخلي موږ هم غواړو چې د ګرانو لوستونکو فرهنګي تنده تر خپل وسه په خپلو مندو ورماته کړو خو د پښتو متل دی وائي چې خان یې په یاران یې؛که چیري ستاسي او نورو د ادب مینان د خپل قلم ګټه زموږ و مجلو ته را ګډه کړي نو کیدای سي چې مجلي مو نوري هم ښکلي شي .

وروره ! خلافت مجلې خو د میاشتنۍ ویاړ تر لاسه کړ او پاته سوه کندهار مجله موږ کوښښ کوو چې پدې ماتو او ګوډو وسائلو چې د شل کلنې غمیزي ضربه یې خوړلي یوه میاشتنۍ یې کړو خو که چیري ستاسو په څیر د نورو ادبي ملګرو قلمي همکاري او ستاسي دعاوي وجود ولري . والسلام

اداره

---

دکندهار مجلې محترم مسول ته !

السلام علیکم ورحمت الله وبرکاته

خدای دې د مجلي ټول کارکوونکی جوړ لري د کندهار مجله چې په ډیرښکلي صحافت چاپ شوي وه په زړه پوري مضامین او مطالبو ته مو خای ور کړی ؤ را ورسیده چې له هره پلوه ډیره په زړه پوري وه له لوی څښتن څخه مو په خپلو فرهنګي چارو کې بریالي غواړم .

مجلې ته مو د ځینو محققینو او پوهانو یو څو مضامین او شعرونه در ولیږل هیله مند یو چې پري خوښ سوي به یاست که خدای کول په راتلونکي که به مو هم نه هیرو . والسلام

ملا محب الله عصمت

د کابل د علوموا کاډمی څخه

---

ګرانه وروره عصمت صاحب سلامونو ته دې وعلیکم السلام وایو

لیک دي د مضامینو په ملتیا را ورسید خدای (ج) دي تل په داسې ښوکارونو پام لره وروره زموږ هیواد د شل کلني غمیزي په دوران کې ډیرو ناخوالي لیدلي چې د نورو زیانونو تر څنګ . په فرهنګي برخه کې . هم ډیر تاوان ور اوښتی دی ډیري فرهنګي سرمایې مو د روسانو او د هغوی د ګوډاګیانو د زندانانو خوراك شوي او یا خو له هیواده دباندي مهاجرت ته اړ شول چې هلته یې هم حالاتو قلم ولیکلو ته پري نښود اوس چې د هیواد په دننه او دباندي کې زموږ په لوی بخت یو څه د قلم خاوندان پوهان ژوندی او د حالاتو له تاړاك په امن را پاته دي نو دا به د لوی خدای (ج) را باندي پیرزو وي څښتن دي د دوی سیوری زموږ له سره نه اخلي که د هیواد روڼ اندي پوهانو لیکوالانو د پوهی وړانګي زموږ د مجلې په پاڼو را ولویږي نو دا به ډیر هغه ځوانان چې په دین او وطن دښمنه تیارو کې یې د خپل فرهنګ او کلتور لار ورکه کړي خپلي موخي ته سم کړي .

والسلام اداره




اسحاقزی پرزه پلورنځی و خپلو گرانو هیوادوالو ته د هر ډول جاپاني موټرانو پرزې او ډول ډول غوره مبلایل په ډیره ټیټه بیه ورکوي او هم ددغو یادو سوو توکیو د پلورنې په برخه کې دامارتی خانگو او دلته د اوسېدونکو بهرنیو موسسو سره د برونو و کېدو ته چمتوالی لري درانه هیوادوال دي خبر وي

پته : د حاجي عبدالله جان و سرای ته څرمه، هرات دروازه ، کندهار ښار

ټیلفون ۲۱۰٤۱۹ _ ۰۳









کراچي خیـاطي هر ډول افغـاني او پاکستاني کالي صدری په نوي ډیزاین سره جوړوي گرانو ښاریان کولای سي چې پر خپل وخت او په خپله خوښه د هر ډول فرمایش سره جوخت کالي او صدری جوړي کړي .

پته : هرات دروازه رحمتی مارکیټ



# اسلام افغان زرعی فابریکه لمټیډ



دلتـــه زرعـــی
ماشـــین الات
لکـــه . هـــل ،
دوپـال ، ۹ پـال
، ۱۱ پـــال ،
زنبر او د غنمو
تریشـر او نـور
ډول ډول د
زرعی ما شین
الاتو پرزي نوي
پـــه فرمـــایش
جوړیـــږي او
زاړه ترمیمږي .
پتـــه : پـــارك
صنعتي پـلاټ
نمبر ۴ بولـدك
سړك ښور اندام
کندهار



د کندهار ولایت عامه کتابتون چې هر راز دیني ، سیاسي ، ادبي تاریخي
اجتماعی کتابونه او مجلي د پښتو ، پارسي ، عربي ، انګریزي او د نړۍ
د نورو ژبو اثار د مطالعي لپاره د سهارله اتو بجو تر دولسو او د ماپښین
لــه دوو بجـــو بیـــا تـــر پنـــځو بجـــو پـــوري ستاســـو پـــه خدمـــت کـــې ده

د کندهار مجله هر ډول تجارتي او
غیر تجارتي اعلانات د بې روح
عکسونو په ملتیا په ورین تندي
خپروي ګران هیوادوال دی خبروي

